د شیخ بستان بړیڅ د مړینې د څلورسومې کالیزې د نمانځنې په ویاړ
۱۰۰۲ هـ.ق. د ربیع الثانی ۷ – ۱۴۰۲ هـ.ق د ربیع الثاني ۷
۱۳۶۰ هـ.ش. د دلو ۱۱ – ۱۹۸۲ د جنورۍ ۳۱

# شیخ بستان بړیڅ




۱۳۶۰



# شیخ بستان بړیځ

دده د مړینې د څلورسومې کالیزې د نمانځنې په ویاړ : په پښتو، دری

ازبکی، بلوڅی، انګلیسی او فرانسوی ژبو د مقالو مجموعه


خپرونکی

داطلاعاتو او کلتور وزارت

د کلتور او هنر ریاست





دشیخ بستان انځور: دیوسف کهزاد

خطاط: نصیر هنر

د چاپ شمېر: ۵۰۰ ټوکه

۱۳۶۰

# دشیخ بستان بړیخ څلورسومه کالیزه

د ښوراوك بړیخان د پښتنو دکولمي یوه درنه پښه ده، چې په پښتو نخوا او هند کې یې هم توري څلولي او هم یې روحاني ډیوی بلې کړې دي.

له دوی څخه د پښتو ادب په تاریخ کې یو لوړ پیژندل سوی شخصیت شیخ بستان دیء ، چې موږیې د نهمي سدی د مورخ نعمت الله له مخزنه پیژنو او بیایې یوه پښتوبدله په پټه خزانه کې مومو .

سږ کال د ده د رحلت څلورسومه سدی پوره کیږي ، اوپه دې مناسبت د افغانستان د علومو اکاډیمی دده په یاد یوه غونډه جوړوي ، او د اطلاعاتو او کلتور د وزارت د کلتوراو هنر ریاست د مقالو یوه مجموعه خپروي . ددې مجموعې له پاره ځینې ښې او ګټه وري تحقیقي مقالې په داخلي او خارجي ژبو سره راټو لې سوي دي ، چې دده پراصل او ځای او ادبي مقام باندې ښه رڼا اچوي اوادبي اوعرفاني منزلت یې لارابرسیره کوي .

که څه هم د شیخ بستان تش یوه بدله د خیر ونکو په لاس کې ده، او څه څه چې په مخزن افغاني او پټه خزانې اوتاریخ مرصع کې په ده باندې کښلې سوي دي ، هم لنډ شا نته دي ، خو بیا هم ددې مقالو ښاغلي لیکوال د قدر وړ دي ، چې دغې مجموعې ته یې ډیر څه ور کړي او خپلو ارزښتنا کو پلټنو او پر تله کړ نو یې د شیخ حال او قال ښه روښانه کړیء دي ء .

دا زموږ د ژبې دادبي تیارو ګوښوروښانونه ده ،چې د علومو اکاډیمي ی په تجلیل او د کلتور او هنر ریاست یې دمجموعې په خپرونه دستاینې وړدي ، او خلك ددغو علمي موسسوداسې ښو اقدا ماتو ته تل سترګې په لاره دي .

**کابل ، جمال مینه**
**۲۰ عقرب ۱۳۵۰**
**پوهاند عبدالحی حبیبی**

a 04

# فهرست

پوهاند عبدالحی حبیبی

# د شیخ بستان او ملاحسن فراقنامی

## یا

### د درد او سوز ، سره ور ته‌شعرونه

د پښتو شعر په متو سطه دوره‌کی ، کله چی د تصوف چاشنی په ادب کی یو خاص سوی او ملاحت پیدا کیء ، ځینی داسی شعری او منظو می ټوټی لرو ، چی هغو ته له‌درده او سوزه ډك عاطفی تاوده او سوځوونکی اشعار ویلای سو .

دپښتنو مور خانو څخه لو مړی‌پلا نعمت الله نورزی هروی د یوولسمی هجری سدی په لو مړ یو کلو کی‌مونږ ته د شیخ محمد بستان بړیځ په‌زامه، یو پښتون ستا نه ولی الله‌شاعر را ښوولی و، چی تر ۱۰۱۸ق دمخه د نعمت الله سره یو ځای او مشهور سړی و ، دوی دواړه‌د جنوبی هند د «گوه» بندر په یوه‌سفر کی‌په یوه‌کښتی کی‌سره ملگری وو ، او دواړه د هند په سا مانه‌ښارکی او سیدل، او نعمت‌الله په خپل کتاب مخزن افغانی کی دده احوال‌او خوارق بیانوی او وفات یی د گجرات په احمد آباد کی په‌جمعه ۷ ربیع الثانی ۱۰۰۲ ښیی . (۱)

دا چی شیخ بستان په عرفان کی‌کوم مقام لاره ، دنعمت الله له دغو صفاتو څخه ښکاری چی‌دده له‌پاره‌یی‌په مخزن کی کښلی دی :

---

(۱) نعمت الله : مخزن افغانی۲ر۷۴۳ . په یوه خطی نسخه کی‌دغه ورځ د ربیع الثانی ۱۱ ده .

«عرفان پناه ، سو خته نارالله ، همای آشیان تفرید، عنقاء قاف تجرید
در دریای وحدت» . (۲)

شیخ د نعمت الله په قول ، پـه ځوانی کی له رو هه هندوستان ته
ولاړ ، او د سا مانی دبړیخانو په پرگنه کی اوسیدیء ، اوځان یـــ
داسی ښکاره کاوه ، چی گوا کـی سودا گردیء .مگرده په خورا لږ
سر ما یه په شرعی حلاله توگه ،معا مله گوتی کو له ، او څه چی ی
گټل ، هغه به یی دبینو او یانو پـــه مرسته لگول .

داچی نعمت الله د شیخ زهد او تقشف او تهجد ستایی ، دا خو ده
عارف دتګ لاری لو مړنی خوری دی، مگر کله چی سالك د «قرب» درجـ
ته ورسیږی، د لته نو مینه او مین او معشوق گرده سره گډیږی،محبو
او محبوب او محب سره یو سی ،نه وصل وی نه بیلتون ، نه قرب وی
بعد ، نه رد وی نه قبول . دی حال ته دتص ـوف په اصطلاح «مخالعه
وایی :

معشوق وعشق وعاشق هر سه یکی است اینجا
چون وصل در نگنجد ، هجـران چکار دارد ؟ (۳)

نو «قرب» یو داسی حال دی ء ،چی د سالك د وجود ټوله صفات
عین پیو ستون او جمع په سیمه کی له ځانه غیبت مو می ، او په پای کی
قرب او استغراق او غیبت هم له منځه وزی ، او پخپله قرب هم لکه بعد
سالك په اوږ ده نول او سـوی اوویلید نگ کی ناقراره ساتی ،ځکه ن
ذوالنون ویلی وو: ان عذاب عاقبـة القرب، اشد من عذاب عاقبة البعد
(٤)

دتصوف ددی دایمی نول او تاخون علت هم دادی، چی صوفی دقرب په حال
کی د «زوال» له ناورینه بیریږی ،نو ځکه نا توانه او د سوزو ساز په حال
کی وی، ناری غلبلی وهی،ویلیږی ،سوځل کیږی ، بنه یی الو تی وی
کالبوت یی نونځه وی . خودبیلتانه او بعد حال دا سی ندی،دلته دآیند

(۲) مخزن ، هغه مخ .
(۳) محمود کاشانی : مصباح الهدایه ٤۱۷ .
(٤) مصباح ٤۱۹

وصال په هیله سالك ژوندی وی، حضرت جا می وایی :

| | |
|---|---|
| محنت قرب زبعد افزونست | جگر از هیبت قربم خونست |
| هست در قرب همه بیم زوال | نیست در بعد جزا میدوصال |
| آتش بیم دل وجان سوزد | شمع امید روان افروزد (٥) |

دا چی ځینی رسیدلی او د برخـی خاوندان صو فیان او عارفان تل د قرب حال هم لکه فراق او بیلتـون تریخ گڼی اوژاړی ، علت یی هم دغه د بیری او خوف او هیبت حال دیء، چی د زوال له ناورینه یی بیریږی او وایی :

اوښکی می څاڅی پرگریوان یووارنظر که پر ما ـ راسه گذر که پرما دشیخ بستان کتاب، بستان الاولیاءچی د پټی خزانی د مولف پلار پــه ښوراوك كی‌لیدلی و، او په ٩٩٨ ق‌تالیف سوی دی . (٦) اوس ورك دی ، او موږ ته دبستان د ژوندانه‌حال پوره نه دی معلوم .

خو دده مخلص مرید ، نعمت الله‌چی څه کښلی دی ، له دی څخه دده دقرب او مخا لعی د سوزو گـدازحالت ښه ښکاری ، دی وایی :
«صاحب دردو شوق بود، چشمان‌شریفش هر گز از اشك خشك‌نبود وچندان درد داشت که گویا الم ومحنت تمام عالم رابر دل او تسلیم کرده اندوهر ساعت آههای دردناك‌از جگر خون آلوده بر آوردی وبعضی اشعار پښتو را بصوت حزین دردناك که سنگ رابگریه آوردی میخواندو

---

(٥) تحفة الا حرار

(٦) د پټی خزانی په خطی نسخه(ص ٢٨) کی ٩٩٨ق د بستان‌الاولیاء د تالیف کال دیء او وایی چی په‌دغه کال شیخ وطن ته راغیء. تردی دمخه په ٢٦ مخ کی وایی: چی دغـه‌کتاب په‌٩٥٦ هجری کښلی سوی و. ځکه چی دده د وفات کال ١٠٠٢ ق‌دی ، نو معلو مه ده چی تر ٩٩٨ ق ورو سته به دی بیا هند ته تللی‌وی .

د پټی خزانی هند سی سنی کله‌دکاتب له‌خوا غلطی‌کښلی سوی دی، چی دلته به هم د ٢٦ مخ سنه ٩٥٦ق‌د کاتب تحریف وی ، ښایی‌چی د کتاب شروع به ٩٩٦ ق او ختم یی‌په‌٩٩٨ ق کی و، او په دی مخ کی به کتاتب سهواً یو (٩) په (٥) اړولی‌ءوی .

اشك از چشمش میریخت ....»(۷) په شرقی اسلامی ادب کی د ټولو ژبو پر خدای مین عارفان کله چی شعر وایی دغه سوز او ساز او دقرب د حالت ناورین او تا خون پکـــی لیدل کیږی :

هر روز غم عشقت ، برما خطرانگیزد
صد واقعه پیش آرد ، صد فتنه برانگیزد
(عطار)

شیخ تمین کاکړ د پښتو یو قدیم شاعر ، دغه د قرب حالت ،چی په بیره او ویرډك دی کټ مټ داسی تصویر کوی :

زړه می له دی ویرنی شین دی          په ژړا ژاړم خه ناورین دی ؟
زرغون له اوښو می سادین دی          په نول نولیږم چی تاخون راغی(۸)

دا چی شیخ بستان به تل دعشق په سوی او کړ اوکی اوښکی تو ولی یابه یی په پښتو دارمانه ډك اشعارپه ویرجن ږغ ویل، هغه حال دی، چی سنایی یی هم :

از سوز جگر چشمی، چون حقهٔ گوهرها
وز آتش دل آهی ، چون رشتهٔ مرجانها (۹)

گنې او شیخ بستان یی داســـی تصویر را کاږی :

د مینی اوردی زما زړگی وریت په انکار کینا ـ ښی تارو نار کینا
خو دبه ویلیږم چی می زړه پرتامفتون کینا ـ ځان می زبون کینا

دسوزو ساز او عشق وگداز حا ل چی نعمت الله پخپل فارسی نثر کی بیان کړی دی ء ، د شیخ بستان په بدله کی داسی سره راانځور کیږی:

له زړه می ځاځی وینی ،سور په وینو خپل یمه تل ـ په اور جلبل یمه تل
له درده سوزه تل ناری اوغلبلی و همه ـ کړ ږی ، سو ری و همـــه

په دی حال اکثر عارفان ا خته وی سنایی علیه الرحمه په دی ژبه ورته ښه راغلی وایی :

چه خوش بودآن روزی، کز سوزدل از شوقت
در راه تو میکاریم ، از دیـــده گلستانها

---

(۷) نعمت الله : مخزن ۲ر۷٤٤
(۸) محمد هوتك: پټه خزانه ۲۷
(۹) دسنایی کلیات ۱۷

د مینې او کړ او ددغه ناورین حال چې عارف یې په ناروا او غلبلـــو کښېیستلی وی، پای یې دا دیء ، چې شاعر د رحمت سیمې ته پناه وړی چې د بیدل په قول «از چمن تا انجمن جوش بهار رحمتست» او حضرت سنایي هم د خپل سوز وګداز پای د «رحمت» دغه لوړ بار ګاه ته رسوی چې :

ای کرده دوا بخشی ، لطف تـو بهر دردی
من درد تو میخواهم ،دوراز همه در مانها
لطف تـوهمی باید، چه فایده از گر یه؟
فضل توهمی باید، چه سود ز افغا نها

واګوریء : شیخ بستان هم دخپل آه او سوزد غلبلو په پای کې درحمت دغه ساحت اعلی ته متو جه کیږی او خپله بدله داسې پای ته رسوی چې:

د خوږو زړو له حاله ته یې ، ای باداره آګاه ـ یې دبې وزلو همراه
د خپل عزت په روی بستان ته کړه دمهر ښندل ـ کړی له ګناهه ګوا ښل
او ښکې می ځاځې پر ګریوان یووارنظر که پر ما ـ راسه ګذر که پرما
(پټه خزانه ۲۹)

په پښتو پخوانی ادب کې خو د شیخ بستان ددی بدلې په څیر فراقی په ویر لړلی اشعار ډیر دی ، ځکه چې د شرقی ادب او عرفان اغیزی زموږ په فر هنګ کې خورا ډیری دی، نو که به څوك د عر فان په کوڅه کې تیر سوی هم نه و، دعارفانو پیښې به یې کولې ، او دشر قې ژبو ادب، په داسې فراقنا مو ډك دی .

## دقند هار د تلو کان ملا حسن

دا سړی چې یو درد من عارف اود طریقت او سلوك پوخ مرشد و، دشیخ بستان تر زمانې دوی سدی را وروسته د قند هار د غربې خوا د تلو کان په کلې کې اوسیدیء، پـــه جذب او شوق او زهد اووجد یـــې شهرت موندلی و، او د پوتې میـــانور محمد داوی اخوند صاحب مریدو په پښتو او فارسې یې د سوز ه ډك اغیزه ناك شعرونه ویل .

څلویښت کاله پخوا ، ما دپښتانه شعراء دوهم ټوك کې داسې کښلي وو: «دده اشعار په حقیقت کې د عشق په اور کې د سوی زړګی هغه وریتې کتری دی ،چې دالفاظو په صورت کې یې د کاغذ پر مخ ځای نیولـی اود

دیوان په ډول جوړی سوی دی... اوسړی داسی گڼی چی ده خپل خوږمن زړه د خپلو اشعارو په الفاظو کی نغښتلی دی ...» (۱۰)

له ده څخه دسوزه ډکی څلوریځی رانقل سوی دی، کله چی دفـراق بیابانو ته مخ نیسی ، او دشعور لهخنده ورزی، نو سر د زړه په خونه دننه کوی او وایی:

زړگیه مه ځه، پر بیابانو نه — سر که دننه د زړه پهخونـه
د روغو زړونو ژړا محال ده — په ژړا ژاړی، ویشتلی زړونه

ملاحسن یوه پښتو فراقنامه هم لری ، چی اوږ ده قصیده ده . اویوه ناقصه نسخه یی ماد قند هار دیوی خطی نسخی په پای کی لیدلی اورا نقل کړی وه .

په دی قصیده کی هم لکه د شیخ بستان بدله، سوز وساز او مینه و گداز په ساده ژبهاو موثره لهجهبیانسوی دی ،او دپښتو ددغسیفراقنامو دسلسلی یوهورو ستنی کړی ده،چیپه خوږمن احساس او رقت کی د شیخ بستان بدلی ته ور ته ده، او زه ددغی قصیدی لاس ته راغلیبیتونه له خطی منبع څخه رانقلوم :

## پښتو فراق نامه

دوسته ! ستاحدیث تیرهدجهاگ(۱۱) سردی
دا زخمیزړگیز ما پـــر بـــرا بـــر دیء
ښایسته جمال دی غر د والضحید ی ء
د زلفینـــو بوی دی څر نگ معطـــر دیء
چی پر زړه یی ستا د مینی اوربلیـــږ ی
له هغو څخهدوږخ کړی ء حذز دی ء ...(۱۲)
دا زما خاطر د غم سپرو تاراج کـــــړ
ستا دوصلوقا صد ته می نظـــــــر دیء

---

(۱۰) پښتانه شعراء ۲ر۳۹۸
(۱۱) جهاگ: یوجگ بوټیء لکهتیره نل .
(۱۲) دلته دری بیته پری سوی دی.

که ملهم می د زړه وکړی نـــازنینـــه !
د هجران په‌اور مې سوی ء د زړه سر دی ء
دیوه روخه رقیب را تـــــه‌وییږ ی
نوس له بله‌رو خه مست لکه‌بد خـر دیء
جد ایی راته د غم کړ یـــــالو هینـــه
بل فـــراق‌را ته ولاړ په لاس خنجـر دیء
نه مې لار د تښتیدو ، سته نـــه‌د صبـر
خـلا ص رابانډی د قضا د کـلا در دی ء
نه مې یار نه مې آشنا سته پداد هـر
جدایی مې‌سوه مادر ، هجران پدر دی ء
بل به زما په رنګ خوك نه وی‌په‌دنیا کی
چې خوراك یی همیشه خـــون‌ځگر دیء
نه د ځان‌په‌رنګ حیران پر جهان وینـــم
نه مې حال‌دچا له حا له برا بـــــر دی ء
وینی ، غو ښی مې خوراك، اوبه‌مې او ښکی
دزړه نخل مې روزه ، دایـــې‌ثمـــر دی ء
د فلك تـــرآسیا سر گر دان زه یـــــم
چې دا هومره غم یوازی را پر ســـــر دیء
خلقه مې و ظا هر صورت تـــــه‌گو ر ی
د با طن په حال مې کم سړی‌خبر دی ء؟
وی به خوك‌چی زما وصال وته هوس کـــه
چې مې وینی‌وا یی دا هم یو بشــــر دیء ؟
که په دردو په اندوه زما خبرســـــی
هغه زما له آشنایی لاس پـــرســر دی ء
نور به نوم‌زما وانخلی که ســـــړ ی و
که یی لاس له ماوا نخست نو ابتـــر دیء
د غم او ښکی مې پر مخ ولی ولی‌ځـــــی
په خراب زړ گی مې یو مـــولاخبـر دی ء

هیڅ شفا مې د طبیب په دارو نسي
د طبیب په دارو زیات زما ضرر دی

ای فلکه ! خپله خوا دی راسره کړه
دا په ما وو ؟ که دې هر چیری هنر دی

د هجران په اور دی زما زړه گی کباب کړ !
واکه دی خپل دی عاوس دی لاس راباندی بردی

د حسن د حال پو ښتنه که څوك کاندی
د خزان پا وخت کی څه حال د شجر دی؟

یادونه : ملا حسن په ختهه ساگزی و ، د عمر پراته شپیتم کال په سنه ۱۲٤٥ ق وفات سوی او دقندهار په تلو کان کی ښخ دی ، خلك یې تر اوسه زیارت ته ورځی .

د شیخ بستان او حسن تر منځ دوی سدی فاصله ده ، خو دقرب په حال کی ژړا او ناقراری یو گډ صفت دی ، چی هم په هغه بدله او هم په دی قصیده کی سره رانغښتی دی او دا هغه یوه ښیگړه ده ، چی پښتو ادب د شرقی ژبو له ادبیاتو سره نښلوی .



پوهاند «رشاد»

# بړیڅی او ښوراوك

بړیڅی دپښتنو یوه قبیله ده،چی زموږ پښت پوهان (نسب دانان) یی دسړبن له ټولنیزی ډلی Sacial Group څخه شمیری او ددوی د وینا له مخی د سړبن په ښر خبون(ښرخبن) ښاخ کې یږی . (۱)

په The cambridge history of India کی دلرغونی آر یایی کتاب ر گ ویدا (۲) په حواله کښلی دی:

«دلسو ملکانو (پاچهانو) جنگ دویدی زمانی مشهور جنگ و ، په دی تاریخی جنگ کی لس آریایی قامونه ملګړی وو او د بهار تیه نومی آریایی قبیلی دپاچا سودا سه پرضدوجنگیدل په دغو لسو قا مونو کی یو قام پکتهان نو ماند. (۳) چی اوسنی پکتون =پختون = پښتون ځنی مراد دی.

ددغه سو داسه پلار یانیکه Devadasa هم دخپل قام نامتو پاچاو.

---

(۱) وګ : مخزن افغانی خطـی(۵۰٤ب) تاریخ مرصع ٦۰٦ ،خلاصة الانساب خطی (٤٥ ـالف) د تواریخ‌حافظ رحمت خانی لو مړی شجـره ٦۷۷ مخ ، تواریخ خورشید جهـان۱۸۰ ، حیات افغانی ٦۷۷ ، صولت افغانی ۳٤۹ مخ او نور ...

(۲) در ګویداد ځینو سرودونـوزمانه تخمیناًدحضرت عیسی(ع) ترزوـ کړی یو نیم زر کاله پخوا بلـــلسویده .

(۳) وګ: درګ ویدا د اووم‌فصل۱۸ـ۳۳ ـ۸۳ سرودونه .

ی د خپلی پاچهی په زما نه کی له‌څو آریایی قبیلو سره جنگیدلی او پر
غو یی بری موندلی دی چی یوه په‌هغوکی Brisaya نومیدله»(٤)
افغانی محققین لکه : استاد احمدعلی کهزاد او لوی استاد پو هاند
بدالحی حبیبی دغه په ویډ کــــی‌راغلی «بریسیه» قبیله بــړ یــڅــی
ولی . (٥)
دبړیڅی کلمه اوس په پیښبـــورراډیو کی د وفا دار او رښتین‌ملگری
ه معنا هم کار یږی. (٦) دا معنامجازی ده اوعلاقی ته‌یی د ملزومیت
لاقه وایی .
د بړیڅی کلمی ددغی مجازی معناماخذ د پتی خان (فتح خان) نکل‌دی
ه دغه نکل کی د پتی خان بړیڅـی‌ملگری چی نه پنځوس تنه بړیڅی‌دی
ملگری اوعزیز گلوی پرپت سرونه‌ښندی په میړانه مری او د پتی خان
لگری نه پرین دی . (٧)

**دبړیڅو خیلو نه:**

بړ یڅی په‌لو مړی سر کی پردووپلارو ویشل کیږی، یو یی «اوتغ»دی

---

(٤) وگ : The cambridge history of India
لو مړی ټوك ٨١ـ٨٢ مخونه د بریتانیا چاپ ١٩٣٥ ع .
(٥) وگ: د افغا نستان دتاریخ‌پښتو تر جمه لو مړی ټوك ١٢٧مخ
. پښتو ادبیاتو تاریخ لو مړی ټوك٤٦ مخ (دوهم چاپ) .
(٦) د پښتو ژبه د دریيم ټوك په٢١٠ مخ (د پیښبور د پښتو اکاډیمی
چاپ ١٩٧١ ع) کی له ملگری سره دربنتین او وفادار قیدنسته، په دغه
کتاب کی چی «بړیچ»کلمه هم‌دبړیخ‌پــه مـعـنـا را و ړل ســوی ده
دا پښتنو تلفظ نه دی. ایـنـکـیان(هندیان) او پاړ سیوانان چی (خ)
نسی ویلای نوله بړیخ‌څخه‌یی بړیچ‌جوړ کړی دی، زما خیال دادی چی
مونږ باید دلغتو نو دغسی مهندواومفر سو شکلو نو ته پخپلو لغتنا مو
کی ځای ور نه کړو .
په روسی ژبه کی بریخ دمبارز اوپهلوان معنالری (وگ: روسی‌پارسی
قاموس ٦٣ مخ) .
(٧) وگ: دملی هینداری په‌لومړی‌ټوك کی‌لومړی نکل (دمحمد گل‌نوری
تالیف) .

او بل یې «اوسین» .(۸)
«اوتغ» پر دغو زیېو (خیلو نو) ویشل سوی دی :
داو دزی (۹)
چوپان زی
ملیزی
بدل زی (۱۰)

---

(۸) په‌سنسکریت کی اسو نی ددوو ستور یونوم دی دا ستوری د
سپوږ مې په مدار کی تر ټولو لومړی‌ستوری دی او په عر بی یې شرطین
بولی (وگ: غیاث اللغات)د سپوږمی‌لومړی مزله ته هم په‌سنسکریت کی
اسونی ویل کیده، له ویدونو څخـه‌معلو میږی‌چی پخوانیو ددغو ستوریو
شکل سپاره ته ور ته (مشابه) باله‌او دوه ستوری یې په دغه نامه‌نومل،
«اسونی» په لر غو نو آر یا یانوکی‌دشهسواری رب النو عه و، مـاته‌د
«اوسین» کلمه چی د نامه په ډول‌دلته راغلی ده. له سنسکریتی‌اسونی
سره بی اړیکی نه ښکاری، پـــراولادونو باندی د ستورو نومونـه
ایښوول په پښتنو کی له لرغونـــه‌باب وو- لودیان هم د ستورو نوم
دی .
(۹) په ځینو کتابونو کی داوتغ‌په‌اولاده کی داود زی نه دی راغلی اود
«اوتغ» پر ځای داود کښلـــی دی(وگ: خلاصة الانساب خطی ٤٨ب
مخ) د تاریخ مرصع په ٦٠٩ مخ کی‌د«او تغ» پر ځای «داود لغ» کښلی
دی اوپه اولاده کی یی داودزی‌نه‌دی‌راغلی .
(۱۰) شیخ شهاب الدین چی د چچهـ هزاره په «شاهی ډیر» کـــی
یې زیارت دی،، بدلزی بریڅی‌و،دده‌په اولاده کی‌د خلاصة الانساب مولف
نواب حافظ الملك حافظ رحمت خان(۱۱۲۰ـ۱۱۸۸ هـ ق) خورا مشهور
سړی تیر سوی دی ، دی دروهیل‌کهنډ له نوابا نو څخه و، د ریاض-
لمحبت مولف نواب محبت خـــان(۱۱٦٤ـ۱۲۲۳ هـ ق) او دعجائب -
للغات مولف نواب الله یار خـــان(۱۲٤۸ هـ ق مړ) او دگلستان رحمت
مولف نواب مستجاب خان (۱۲٤۸هـ‌ق‌مړ) د حا فظ رحمت خان زامن‌وو*

ثابت زی (۱۱)
شکر زی
پرو کی زی (۱۲)
اوسین پردغو زیبو (خیلونـــو)ویشلی دی :

| | |
|---|---|
| بارکزی | مندو زی |
| زکوزی (۱۳) | بسازی |

---

*دتاریخ محتشم مولف محتشم‌خان،دتاریخ سلیمانی مولف محمد سلیمان
خان «اسد»، دتاریخ روهیل کهنـه‌مولف نیاز احمد خان «هوش»- دگل
رحمت مولف سعادت یار خان‌داخبارحسن مولف حسن‌رضا خان‌هم‌دحافظ
رحمت خان له پر گی دی :- الله بخش یو سفی چی په یوسفزی‌افغان
(دوهم چاپ ۶۱۳) کی حافظ ر حمت‌خان یو سفزی بللی دی ، یوه ښکار
تیرو تنه ده .
* * *
(۱۱) ثابت‌زی‌د شیخ ثابت‌بریښی‌او لاده ده ، شیخ ثابت د شیخ‌مودود
چشتی هروی (۴۳۰ -۵۲۷ ه ق) رحمة الله علیه مریدو ، د چشتیه
طریقی مو دود یه ښاخ دغه شیـخ‌مودود ته منسوب دی .
د ثابت زی پر ځای په ځینوکتابوکی شیخ ثابت لیکلـی دی (وګ
تواریخ خور شید جهان ۱۸۴ مـخ-صولت افغانی ۳۴۹ مخ)
(۱۲) په تواریخ خور شید جهان‌او صولت ا فغا نی کی دپروکی‌زی‌پر
ځای «بسوك زی» لیکلی دی .
(۱۳) دانگار داخباردامتیاز خاوند،مو سس او مسوول مدیر اروابناد
فیض محمد «انگار»زکوزی بریښی‌و.دی د ۱۳۵۷ ش کال د حوت په‌اوو
په کابل کی مړ او سبایی په‌کند هارکی خاورو ته وسپارل سو، انگار
محمدظاهرشاه (۱۳۱۲- ۱۳۵۲هش) په پاچهی کی لومړی غیر دو لتـ
اخبارو چی لومړی گنه یی د ۱۳۲۹کال د حوت په نهمه په کابل کـ
خپره سوه .
اروابناد «انگار» دحاجی گل‌محمدزوی د محمد حسن لمسی د ملامحم
اکرم اخوندزاده کړوسی دحبیب الله‌اخوند زاده کو سی او د حاجی‌عظمت
نیکه کودی و. حاجی عظمت نیکـه‌چی له ښور اوکه څخه دکندهارښا
ته رالیږ دیدلی دی په زکوزیو کی‌جلوزی او په جلوزیو کی‌نیکنام‌زی و

راودزی (؟) (۱٤)

حافظ الملك حافظ رحمت خـان بړیځی چې په ۱۱۸٤ هـ ق د هندو-
ستان په روهیل کهنډ (۱۵) کـــی خلاصة الا نساب کښلی دی هلته یې
یکلی دی :

اوس بړیځې پښپل اصلی وطـن ښوراوك کی یوازی پر دغودروزییو
یشلی دی :

بدل زی

زکوزی

مندو زی

چوپان زی او ملیزی دیوسفزیوسیمی ته را کوچید لی او زیاتره بیا
ه هغه ځایه هندو ستان ته راغلـی دی ، ددغو دوو زییوخلك چې په
سوراوك کې پاته دی ځانته خانی (اود مځکو تاکلی جلابرخه) نه لری
شکر زیو، راوزیو ،ثابت زیو او نورو (بارك زیو ، بسازیو، پرو کی زیو)
سمیر لړو، دوی هم په هغو دریو زییو (بدلزیو، زکوزیو،مندوزیو) کی
دغم سوی دی .

---

(۱٤) دغه نوم په خطی خلا صـةالانساب (الف ٤۸) کې «راودزی» په
چاپی خلاصة الانساب (۱۰٤مخ) کی (راوزی) ، په چاپی تا ریخ مر صـع
۶۰۹ مخ) کی «داوزی» کښلی دی، په تواریخ خورشید جهان (۱۸٤ مخ)
ی دغه نوم «مرادنه» سوی دی ، دحیات افغانی اوصولت افغانی مولفینو
ه هغه ښخه (مردان زی) جوړ کړی دی .

(۱۵) روهیل کهنډ د هندو ستان په شمال کې د گنگا درود پر ختیزه
اړه باندی د یوی پراخې سیمی نوم و، رامپور ، مراد آباد ، بریلی ،
ساهجهان پور ، سنبهل، بجنور، نجیب آباد امرو هه او نگینه یـــی
شهور ښارو نه دی. د علا مـــه احمد رضاخان بړیځی (۱۳٤۰هـ ق مړ)
و حافظ رحمت خان بړ یځـــــی زیار تونه په بریلی کی دی، اوس
روهیل کهنډ سیمه له اداری لحاظه په اترپردیش (شمالی ایالت) کـــی
سا مله ده ، ددغه ایالت مخفف نوم یو پی ( U.P. ) دی .

د حافظ رحمت خان دغه لیکنــه پسله دوو سوو څو کالو څخه اوس
هم راشتیا کیږی اودښوراوك دکرهنی مځکه پر نوموړو دریو زیبو (بدل‌زیو
ژکوزیو، مندوزیو) باندی په دی‌ډول ویشلی ده :

۱ـ دبدل زیو برخه: دپښین‌خواته‌له غل دری څخه تر بادر زیو پوری
(دښوراوك ختیزه سیمه) .

۲ـ دژکو زیو برخه: له پنج‌پایه‌څخه دریگ تر علاقه داری پوری .

۳ـ د مندوزیو برخه : له کاریزه‌څخه دبلو څانو ترڅکه (بریده)پوری
(د ښوراوك لویدیزه سیمه )

دلته دا هم باید ووایل سی چی‌دمندو زیو په برخه شیرانــی هــ
اوس شریك سویدی (۱۶) اودبړیڅودځلورم خیل په تو گه پیژندل کیږی
جلا خانی او د مځکو تاکلی برخــه‌لری .

په‌حیات افغانی(د۱۲۸۳هق‌تالیف)او صولت افغانی (د ۱۲۸۹ ه ق
تالیف) کی چی دښو راوك بړیڅی‌پرځلورو خیلو نو او خانیو ویشـــل
سوی دی شیرانی یی هم بړیڅی‌بللی دی ، مگر شیرانی بړیڅی نه‌دی

---

(۱۶) ویل کیږی چی‌په پخوا‌وختو کی د شیرانیو او بړیڅوتر منځ‌کوم
جگړه پیښه سوه، په دی جنگ‌کی‌دشیرانیو او یا تنه مړی پر بړیڅو
باندی پور پاته سو، په‌روغه کی دغه‌مځکه شیر انیوته دمندوزیو له‌برخی
څخه ور کړ له سوه او تر اوسه‌پوری‌پرهغه مځکه باندی شیرانی آباد ا
په غم و ښادی له بړیڅو سره‌شریك‌دی .

په ښوراوك کی دبړیڅو سره د شیرانیو میشتیدل تر ...۱هق‌پخوا
داځکه چی حسینی په‌اولیای افغان کی‌لیکلی دی :

حضرت شیخ المشایخ شیخ‌قاسم‌سلیمانی رحـمة الـله علیه (۹۵۶ـ
۱۰۱۶ هق) چی په ۹۹۱ هق کال له‌عربستانه څخه د مکران او خاران‌ل
لاری کند هار ته تیء له نوشکی څخه‌چی ښوراوك ته‌ورسیدیء لومړی‌ی
دشیرانیو په‌کلی کی واړول دحضرت‌شیخ رحمت چشتی د زوی شیـ
عمر شیرانی میلمه سو ،حضـــرت‌شیخ عمرشیرانی ته‌یی دلته‌دخلافت
خرقه ورکړ له بیا نو دبړیڅو کلیوته‌پسی ور تیر سو .

(وگ: تذکرة الاولیای افغان‌خطی‌نسخه ۶۶ب)

بلکه تر بړیڅو وړاندی د ښرخبــن(ښر خبون) د ښاخ یوه داسی څانگه ده چی بړیڅی دهغه‌ښا خله(شاخچه) بلله کیږی او له دغه امله نو د ، ښوراوك بړیڅی شیر انیو ته د تره(اکا) په ستر گه گوری .

په خلاصة الانساب کی بدل زی‌پر دغو پنڅو پښو ویشلی دی :

سالار زی

بسین زی

ادوړی (زی)

ملا خیل

دولت خیل

مولف دا هم زیاتوی :

ارویدل کیږی چی ملا خیل‌اودولت خیل اوس په ښوراوك کی نه دی پاته دیو سفز یو سیمی ته‌راغلی‌اوزیاتره یی بیاله هغه ځایه‌هندو ـ ستان ته راالیږ دیدلی دی .

په خلا صة الانساب کی دا هـم‌راغلی دی چی مندوزی اوزکو زی‌هم دبدلز یو په څیر پر څو څو پښــوویشلی دی . مگر د هغو نو مونه یی نه دی راوړی . (۱۷)

**دبړیڅو ټاټو بی :**

د بړیڅو پخوانی ټاټوبی دبســت‌تاریخی سیمه وه چی پښتانه یـــی کلابس Kalabis بولی (۱۸) اوس‌هم هلته څه بړیڅان اوسی ، دپتی ـ خان اورابیاد نکل‌قهر مان (پتی خان)دکلابس له بړیڅو څخه و، (۱۹) په دغه نکل کی د هلمند پر غاړو باندی‌دبړیڅو گنه آبادی ښیی .

---

(۱۷) وگوریء د خلاصة الانساب‌دچاپی نسخی ۱۰۴ــ ۱۰۶ مخونه اود خطی نسخی ۴۸ـ۴۹ مخونه .

(۱۸) د بست کلاد هلمنددمشهوررا ده پر ختیزه غاړه باندی ودانه‌وه دارغند او رود ددغی کلا په جنوب‌کی په هلمند گډیږی.

(۱۹) د پتی خان اورابیا د نکل‌په‌یوه ناره کی دغه مطلب داسی ویل سوی دی :

که دوی دی کلابس دروازی دوی‌دی

پر یوه یی پتی وزی    پر دا بله یی د مور سوی ناری‌دی

په ۱۰۵۸ هق کال پر کندهــــاربانډی د ایران د صفوی پاچا دوهم شاه عباس (۱۰۵۲ ـ۱۰۷۷ هق) دحملی په وخت کی چی پر دل خان برېڅی له خپل قبیلوی لښکر سره د ایرانی فوجونو په مقابل کی پنځه پنځوس ورځی دکلابس کلابندی وساتله(۲۰)دغه پیښه هم دابښییچی تریوولسمی هجری سدی پوری لادهلمند پرغاړه په تیره بیا په کلا بس کی ډیــــر برېڅی میشته وو، سل وخو کا لــه پخوا چی ډېتی حیات خان پوپلزی(؟) حیات افغانی (۱۲۸۳ هق تا لیــف)کیښی دکلابس(بست) دشاوخوا برېڅو خپله خانی درلوده او خــان یــی اورنگ خان نو ماند. (وگ:حیات ـ افغانی ۱۵۳ مخ)

بل د هلمند پر کینه غاړه بانډی دگرمسیل او سیستان تر مینځ پــه لنډی او پلا لکه Palalaka کی اوس دری سوه کوره برېڅی میشته دی دغه برېڅی دز کوزیو لهایسازی پښنی څخه دی .

لنډی او پلا لکه دوی والـــی دی(۲۱) چی برېڅو پخپله کیندلی دی لنډی واله لویدیزی اوپلا لکه واله ختیزی خواته واقع ده د دواړو ترمنځ

---

(۲۰) ددغی پیښی تفصیل اودپردل خان د بی ساری میړانی بیان دچاپی تاریخ مرصع په ۲۳۰ ـ۲۳۱ مخونو کی او ستلای سی ، پښتون شا عر ملا مست هم په سلوك الغزات کـــی ددغی پیښی په باب یوه قصیده لری او په هغه کی یی دپردل خان برېڅی او دده د قبیلوی لښکرو ستاینـــه داسی کړیده :

... شوه ور ته توره دپولا دو چی مغل خبله وهی لکه ارهنډه
یولښکر دپردل خان دی چی طوفان که لك .... ونه که بر غنـــډه
صدر حمت په غه سربازو پښتنو شه ... یی کړل په تورو هنډه هنډه
دوی تر خپلو کلو تیر وو په اختیاره شهادت وینی یی تویی شوی په ډنډه
کلا بست ښهر یی وران په...کړ په دولت یی تماشی وکړی ملنډه

(۲۱)دپلا لکی نوم د صولت افغانی په ۳٤۷ مخ کی «جوتی پلانك» لیکلی دی. چی د «جوی پلالك» محرف اومصحف شکل دی د پلالکی نفوس د اتلس قریه های افغا نستان په۱۳۰۶مخ کی ۲۳۰ تنه ښوول سوی دی.

تقریبا لس کیلو متره واټن سته ،پخوا چې خلکو پر ماری او ښانو سفر کاوه سهار چې به له لنډۍ او پلا لکۍ څخه مخ پر لویدیز رهی سول مانښام چهاربرجك (چاربرجك) ته رسیدل (۲۲) اوس دغه لارپـــر موټر سیکلو نو باندې په یوه نیم‌ساعت و هې .

لنډۍ او پلالکه له اداری لحاظه د دیشو Desu په اولسوالی پورې اړه لری ددغې اولسوالی ختیز لورته دګر مسیل (ګرمسیر) او لسوالـــی پر ته ده ، دا دواړه اولسوالی‌دهلمند په ولایت پورې اړه لری چې مرکزیې دلښکر ګاه ښار (بست) دی .

لنډۍ او پلا لکه د هلمند ولایت‌ترټولولویدیزه سیمه‌ده(۲۳)ددغووالو (ویالو) لویدیزی خواته درود بارګلی(لوړ او کښته) واقع دی چې لـــــه اداری لحاظه د نیمر وز دولایت دچاربرجك په اولسوالی پورې اړه لری‌او بلو څان پکښې میشته دی د لنډۍاوپلالکی ختیز لور ته د خواجه علـی

(۲۲) چهاربرجك‌دایران پرسرحدباندی یوه افغانی او لسوالی ده‌چی له اداری لحاظه څخه دافغا نستان‌دنیمروز په ولایت (چخانسور) پوری اړه لری‌دغه اولسوا لی د افغا نستان‌په جنوب غر بی ګوټ (کنج) کی‌پر ته ده، د هلمند رود چی تر چار برجك‌تیر سی د شمال خوا ته ګرزی .

(۲۳) له لښکر ګاه (بسته) څخه‌چی ځوك لنډۍ اوپلالکی ته ځی، دغه سیمی اوکلی یی په روڼ سره (علی‌الترتیب) مخی ته ورځی :

بولان ،عینك، خلج، زارس ،سردژ،شملان (لـه دغه ځایه د ګر مسیل اولسوالی پیل کیږی.) هزار جفت ،کوپك ، درویشان (لوړ اوکښته) کو شتی ، میان پشته (لوړه وکښته)لکی، صفار ،بنادر، لویه واله ، لنډی واله ، بګټ (لوړ اوکښته) خانشین،قلعه نو یا قر یه نو (له دغه ځایه د دیشو او لسوالی پیل کیږی) پایګل،خیر آباد،تاغز، ملخان‌د یشو، خواجه علی (لوړ اوکښته)

په هزار جفت کې‌د جامع الانوارفی‌الصلوة علی النبی المختار ـ جامع‌ـ الدر رفی نعوت خیر البشر ـ جامع‌الجوا هر فی اسماء الاخیارو الکوامل یاقوت الاحمر فی الصلوة علی خیرالبشر اورساله فی بیان المبشر ات المولف دلیکوال ملاکبلی اخونـــــدبریڅی (۱۳٤٦ هق مړ)زیارت سته، ملا کبلی اخوند د هلمند له‌بریڅـوڅخه و .

کلی پروت دی په دغه کلی کی هم بلو خان اوسی ، له لویدیز او ختی
لوری څخه د بلو ځانو احاطی د لنډی او پلا لکی پر بریخودالغیزه کړی ده
چی ژبه یی لږ کړ کیچنه سویده اوځینی خلك یی پښتو گوډه ماته وای
او په بلوځی هم رغیږی .

دکند هار په ښار کی هم دبریځانوڅو کوره ستته ، مگر د دوی داستو
تر ټولو لو یه سیمه ښوراوك دی چی دلنډی او پلالکی والی یی شمال غر
ته پر تی دی ، له لنډی اوپلا لکـی څخه که څوك دریگ پر لار د مار
اوښی په سپارلی ښوراوك ته رهی سی، دو همه ورځ ور رسیږی. د
ښوراوك د نفو سو په باب داروانښادانگار پلار حاجی گل محمدخان پخپ
یاد داښتو کی کښلی دی : د ښوراوك دبریځو سپین زیری وایی دچنگیز
چنگیز یانو له ظلمه چی زموږ نیکه گان ښوراوك ته راو کو چیدل دو ولس
زره کوره وو.

مگر ډیټمی حیات خان په حـیات افغانی کی یوسل و شل کاله پخو
کښلی دی چی اوس په ښوراوك کی تخمیناً دری زره کوره بریځی اوسی
دحیات افغانی په دغه شمیر کـــی شیرانی هم راځی د ښوراوك دخلك
شمیر چی د اتلس قریه هـــــای افغا نستان په ۱۳۴۹،۳ مخ کـ
لیکلی دی تقریباً یوولس زره تنه دی په دغو کی تقریبا دوه زره تنـ
بریځان نه دی او ددغی سر شمیر نی له مخی چی په ۱۳۵۳ ش کال په کاب
کی خپره سویده د ښوراوك دبریځوشمیر بی له شیرانیو نهو زرو تنو
رسیږی . (۲۴)

د Dictionary of the Pathans tribes په ۲۱۰ مخ کی لیکلی دی
«څه بریځی په کوټه( کو یټه) پښین او ځاگی کی اوسی ، دغه قبیلـــ
زیاتره دافغا نستان په جنوبی برخه ښوراوك کی میشته ده.» (۲۵)

---

(۲۴) د ښوراوك په باب به پـه راتلو نکو پاڼو کی مفصله څیړنــ
راسی .

(۲۵) په دغه کتاب کی د ښوراوك کلمه Shocawat لیکلی ده ،ښای
چاپی تیرو تنه وی .(؟)

* * *

د اولس مجلې د ۱۹٦۸ ع کال داکتو بر په گڼه کې «عابد» کښلي دي:

«برېڅي د کو يټې دوېژن پـــــه‌شرارو د نو مې ځاى کې له‌عيسى خيلو سنتيا کاکړو سره ميشته‌دي.په کوټه (کويټه) کې هم اوسي.»

«د Pathans نومي کتاب په سلم مخ کې ليکلي دي :

د برېڅو څو کوره د کويټې دبولان‌دځکو مت په ښاگي کې هم ستنه او څه بر يڅي په نو شکې کې هم‌اوسي*

څه اکازي، اليك زي اووسمي‌زي‌برېڅي (چې‌له‌نسبي لحاظه‌په‌مندوزيو گڼل‌يږي) په بولان کې له سنجرا نيو بلوڅو سره ميشته دي او اوس يې خپله ژبه له لاسه ور کړې ده، ددغو برېڅو شمير سلو مړو (ميړو) تـه رسيږي.»

ملك صالح‌محمدلهړي دبلوچستان نومي کتاب په ۵۵ مخ کې ليکلي‌دي: په ۱۹۵۱ ع‌کال چې‌په بلوچستان‌کې سر شماري وسوه دبلو چستان دبرېڅو شمير ٤۹٦۵ تنه و .**

په صولت افغاني کې ليکلي دي:

«برېڅي په هندو ستان کې هم‌اوسي د جهجر پر گنه د برېڅانو ده په ۱۸۵۷ ع کال چې د هند وستان‌دآزادولو له پاره هندو ستا نيـان پور ته سول ، د جهجر برېڅي رئيس‌هم د دغو غازيانو مل و، انگريزانو چې بري وموند دغه برېڅي رئيس‌يې په دار کړ .» (۲٦)

دجهجر پر گنه د ډهلي او علي گړ هـ تر منځ پر ته ده . له اداري لحاظه د سکندر آباد په حکومت‌پوري‌اړه لري ، سکندر آباد سلطان‌سکندر

---

* دريل هغه پټلې چې له کوټې(کويټې) څخه زاهدان (ايران) ته ځي له ښاگي، نو شکي او دالبندي څخه تيريږي .

** ملا صالح محمد برېڅي چې دياسين شريف سورت يې په پارسي ترجمه نظم کړى دى ، د کـوټـې(کويټې) د شاو خوا له برېڅانو څخه و. (وگ: وندر ۵۱ مخ)

(۲٦) وگ : صو لت افغاني۳٤۹مخ .

لودی (۸۹٤_۹۲۳ هق) ته منسوب دی . (۲۷)
برېښی دروهیل کهنډ په ښاروئوکې هم ستته ، په تیره بیا «بریلی» په
ډک دی . (۲۸)

د Pathans په سلم مخ کې لیکلی‌دی چې په بمبئی کې د «بړوچ» په
نا مه ښار هم بړېڅو ته منسوب دی‌او له دی څخه معلو مېږی چې بړېڅی
تر گجر اته هم رسیدلی وو .

## ښوراوك

ددی مقالې په تیرو پاڼو کې‌ماوعده کړی ده چې په راتلو نکو پاڼو کې به
د ښوراوك په باب مفصل وږغېږم،اوس دادی له هغې وعدی سره سم
دښوراوك په باب چې د شیخ بستان رحمة الله‌علیه‌تاټوبی دی‌خپلی
خبری پیل کوم .

د ښوراوك سیمه داوسنی کندهارپه جنوب غر بی کنج (گوټ) کې‌واقع
ده او د اولسوالی په نامـــه اداری‌تشکیل لری دریگ په‌نامه یوه‌علاقه
داری هم په دغه اولسوالی پوری‌تړلی‌ده ، د ښوراوك او لسوالی پخوا د
افغا نستان په اولسی جر گــــه(پارلمان ) کی‌دیوه وکیل حق‌درلود .

د ښوراوك د سیمې شــمال اولویدیز ته ریگ(ریگستان) پروت‌دی
دغه ریگستان په شمال کـی دسپین‌بولدك تر حدودو او په لویدیز کی د
افغا نستان تر غر بی ټك (سرحد)پوری غز یدلی دی ،لمر خاته ته یې
دخواجه عمران غر دی چې له‌پښینه‌څخه ښوراوك جلا کوی . د جنو بې
ډډی غرونه یې دبراهوی * بلوڅو(؟)تاټوبی دی چې په نو شکــی پــوری

---

(۲۷) وگ: موډرن جغرافیه ضلع‌بلند شهر ۲٤ مخ د خورجې چاپ
۱۹٤٦ ع .

(۲۸) په هندو ستان کی د بریلی‌په نامه دوه ښاره ستته یو یی رای
بریلی اوبل یی بانس بریلی بولی،رای بریلی دلکهنو په جنوب‌کی واقع
دی.اوبانس بریلی په رو هیلکهنډکی‌درامپور څتیزی خواته پروت دی .
*زیاتره پښت پو هان براهوی بلوڅ نه بولی .

اره لري د ښور اوك مځكـــه ښوي ډاګ دی. او ددغه ډاګ په‌منځ‌کـــی
هیڅ غر نسته مځکه یی مټ ده، ډیری ښیخی نه لری .
دښوراوك د مساحت په باب د صو لت افغانی په ۳٤۷ مخ کی لیکلی
دی :
«ښوراوك نسبتا په مربع شکل پروت دی ، هره خوا (ضلعه) یـــی
تخمینا شپیته میله اوږده لری»
دصولت افغانی دغه لیکنه د حیات‌افغانی (۱۵۳ مخ) نقل دی .
په اتلس قریه های افغا نستان۳ر۱۳٤۹ مخ) کی د ښوراوك د ټولی
او لسوالی مساحت ٤۹٦٤ مربع‌کیلومتره راغلی دی ، مگر قاضی عطاالله
خان د پښتنو په تاریخ کی دښوراوك ټوله علاقه تقریبا شپیته مربع میله
ښوولی ده** داروانښاد قاضی‌صاحب‌دغه لیکنه داسی تو جیه کیدلای سی
چی ده به یوازی د ښوراوك هغه‌آباده‌مځکه شپیته مربع میله بللی وی چی
دبړیخو کروندی او ټاټوبی دی اودنوی اوزاړه ښوراوك په نو مونـــو
یادیږی .
په قاموس جغرا فیایی‌افغانستان‌کی دښوراوك کـلی اوه و یشـــت
ښوولی سوی دی (۲۹) مگر په اتلس‌قریه های افغا نستان کی یی د دوو-
ویشتو نو مونه راوړی د ی. (۳۰) په دغو کلیو کی یی تر ټولو لوی‌کلی
بادر زو دی چی تقریبا یو زرودوه‌سو تنه پکښی اوسی . په زیاتـــرو
کلیو کی دوه دری کور ه براهویان‌هم‌سته نارینه یی دکلی سار وانان او
شپنیان دی ، ښځمنی یی کمبلی ، جوالو نه، خور جینان اوپرزانکونـه
(د ستر خوانونه) اوبی .(۳۱)

---

** وګ: د پښتنو تاریخ لو مړی ټوك ۱۵ مخ لو مړی چاپ .
(۲۹) وګ: قا موس جغرافیایی افغا نستان ۳ر٤۱ مخ د کابل چاپ
۱۳۳/ هـ ش .
(۳۰) وګ: اتلس قر یه هـــای‌افغا نستان ۳ر۱۳۵۰ مخ د کابل‌چاپ
۱۳۵۲ هـ ش .
(۳۱) وګ: وږمی مجله د ۱۳٤۹ش کال‌ورو ستی‌گڼه ۵۲ مخ دپالوال
مضمون .

## کلی او کورونه :

پالوال لیکی دی :

(د ښوراوك) دبڼیخو کور په یوه‌ساده کوډی (کوډله) یا خونه کی وی کوډی یی په بیضوی شکل د غزه‌له ښڼو لښتو څخه جوړه سوی ده چی څلور ښڼځه دانی یی یو ځای په‌مځکه کی له یوی او بلی خوا څخه د نیمی دایری په تو گه نجتی وی ، پر سر یی کیږه وراچوی (۳۲) ، هغه کوډی چی د ژمی له پاره وی‌برکیږه سر بیره یی گـلـــه وی (اخیړوی) .

خونی یی څلور د یو اله لری ،چتیی له یوه اوږ ده تیر (متهی) او د غزه له لښتو څخه داسی جوړ کړی‌وی ، لکـه عصر ی چادر پو ښــه کورونه (۳۳)

دغه خونی او کوډی یوه د بلی‌وارخ ته په بیضوی یا مستطیل‌شکل یولاړ (لړ) پر له پسی پر تی وی، برشاو خوا باندی ( د ښاری ډو لـــه کوروانو په شان )دیوالونه نه‌لری،اوزیاتره کوډلی بی دروازی وی دا ځکه چی په دوی کی مخ پټی او غلا نسته.

## کښت او کر :

د ښوراوك دوبی (اوړی) ډیر توداو ژمی معتدل دی ، څه تره کی‌او خروټی کو چیان ژمی ښوراوك ته‌رسوی .

د ښوراوك کښت په‌باران دی،فقط یو کار یز گی پکښی سته چی‌پر هغه هم دوه دری کوره آبــاد دی، نوری بهاندی او به نه لری ، غنم، اوربشی او باجره دیمه (للمی)کری،څه دیمه پالیزونه هم کوی .

د ښوراوك د بړیخو سپین ږیری‌وایی :

---

(۳۲) کیږه : دغزوله‌لښتو یانلونو(نلانو) څخه تغر غوندی شی او یی دخونو په پو ښښت کی یی پر تیرانواچوی ،دتجر (ویږی — شپول)کارهم ځنی اخلی، په بوساړو کی هم پــه‌کاریږی .

(۳۳) دغسی پو ښښت ته پښتانه‌منډو mandaw وایی ، منډو اوښ بوك (بوکان —کوب) دی،دغسی پوښښت هم د اوښ بوك ته ورته وی .

زموږ نیکه گانو چې په ښوراوك کې واړول کښت یې په باران و له لوړی څخه یی مځکې نه اوبیدلې (۳٤) ستر ستانه حاجي محمد نیکه خیشکی دوی تشویق کړل (۳۵) چې والــي وکاږی او له لوړی څخه او به خپلو کروندو ته وخیژوی ، بر یخو د حاجي نیکــه خبره و منله لیځی یی راوغښتلی لوړی ته یې اومه بندونه واچول دوی لو یی والې یې ځنــی وکښلی یوه واله یی د بدلزیو اوزکوزیو وه ، بله واله یی د مندوز یووه چې شیرانې هم په شریك سول ، له دغو لو یو والو څخه یی بیا کوچنی ولی جلا کړلې چې په دغو کی شپږ والی یوازی د مندو زیو دی، ورو ـ سته وروسته داوبو د هغه بند پــه اغیزه چې د پښین په ملوزو کی لوړی تهواچول سودلوړی اوبه ښوراوك ته ونه رسیدلې او ښوراوك یی په یوه بی اوبو میره بدل کړ اوس د ښوراوك دخلکو کښت وکر د باران په اوبو دی ، څه اوبه په اوښا نو له څهانو را کاږی، څهان یی شپیته ، اویا متره ژور دی ، دڅهانو اوبه یی تروی هم دی او لږ هم ، ځکه نو دوی نــــاوران (څلیرونه) هم لری په ناورانو کی دباران او به ذخیره کوی ، دڅاو ناور په اوبو د ښوراوك خلك خپله ورځنۍ اړی ایسته کوی چیښی یی ، او د ـ سونه په تازه کوی ، لوښې او کالی په مینځی، غیلی او بوده په اوبوی،

---

(۳٤) لوړه Lora دیوه رود نوم دی دارود دتوبی لهغرو راوزی تــر پښین او ښوراوك تیر یږی د ځاگی (چاغی) علاقې ته ځی اوږده یی ۲۵۰ میله دی ، لوړه ژوره ده ، غاړو ته یی او به نه خیژی، د پښین د ملوزو (ملیزو) په برخه کی پر لوړه باندی داوبو راکښلو یو لوی ماشین پروت دی چی دیرو لیرو لیرو مځکو ته اوبه رسوی .(وگ: د عبدالروف بینوا پښتو نستان ۱۰۵ ـ ۱۲۵ مخونه).

(۳۵) دحاجی محمد نیکه خیشکی زیارت په ښوراوك کی مشهور دی، خیشکې د ښوراوك د بړیخو ستانه دی صاحبان یی بولی اوس د دغــی کورنی د غړو شمیر دریو سوو تنو ته رسیدلی دی ، جلا کلی لری چی د (صاحبانــو) پــــه نامــه یادیږی ،خیشکو ته بړیخو سیری ور کړی دی او یوه کوچنی فرعې واله یوازی د دوی په نامه ده .

دځمانو اوناورو اوبه دومره نه‌دي‌چې‌دکښت وکر له پاره هم کار ځنی
وا خلی ، د ښورراوك مځکه ډیره ده اواوبه لږ ، ځکه نو ځینو مځکو ته د
کر هڅې وار پسله څلورو پنځو کالوور رسیږي، نه دغه امله یې نو مځکې
خورا زور وری دی ، ډیر حاصل کوی او امبار (سری) ته یې هیڅ
حاجت نستته .

**مالیه :**

په حیات افغانی کی لیکلی دی:

په پخوا زمانو کی د ښورراوك‌خلکودکند هار حکو مت ته څلور سوه
سپاره ور کول (چې په جنګو نو کی‌به یې د خپل دو لت ملاتړ له)، دامیر
عبدا لرحمان په پاچهی (۱۲۹۸ ـ۱۳۱۹ هق) کې د ښورراوك د بړیڅانو
مالیه یو سل وډری اویا او ښه وه‌چې‌هر کال به یې دولت ته ورکول،
دوی دغه مالیه د «غم» په نامه‌یادوله(۳٦) د غم برخه هری زیی (خیل)ته
د خپلی ټاکلی ګډی مځکې په اندازه‌ور رسیدلی وه، مثلا د مندوزیوشپږ
کوچنی (فرعې) ولی وی، د هری‌ولی‌خلکو اته اوښان ور کول او په دی
حساب نو د ټو لو مندوز یو غم اته‌څلوینښت او ښه وو،

د اعلیحضرت ا مان الله خـــــان(۱۳۳۷ ـ۱۳٤۷ هق) په وختو کې‌چې
جنسی مالیه په نقدی مالیه واوښتله‌دښورراوك د مالیی یو اوښ یې په‌دری
نوی افغانی بیه کړ، په دی حساب‌نودښورراوك کالنی مالیه شپاړس زره
افغانی کښیښنو وله سوه .

**دویش دود :**

د ښورراوك دبړیڅوتولیدی وسیلی‌مالداری او کرهڼه ده ، په مالداری
کې غیلی او اوښان د هر چاشخصی‌ملکیت دی اوارشو د قبیلی تر منځ
مشترکه ده د ښورراوك مځکه ګـــډقبیلوی ملکیت دی . د ټاکلی مودی
له پاره د مستقیم مولد (بزګر) پـه‌اختیار کې وی ، ټاکلی موده چې یې
سر ته ورسیدله مځکه بیر ته دقبیلی‌په ا ختیار کی ور کو له کیږی له
مځکې څخه دغه‌را ز ګټې اخیستلو ته‌په پښتنو کې د ویش دود وایی، د
ویش دود په یو سفزیو، باجوړ د شیګل په شینوارو کې هـــم رواج

(۳٦) په نور کند هار کی هـــم‌مالیه غم بولی .

درلود او په ځینو قبیلو کی لاتراوسه‌پوری د ویش دود سته، دښوراوك بریخی د کندهار په پښتنو کی هغه‌یکړه قبیله ده چی تر اوسه پوری یی لادویش د ود ساتلی دی ، پــه‌ښوراوك کی‌دزیی (خیل)مځکه ټاکلی ده او دویش له پاره پــه روڼ سره(علی الترتیب) دغه پنځه واحده‌لری:

۱ـ نیکه گنی
۲ـ پلر گنی
۳ـ کهول
٤ـ کورنۍ
٥ـ کور

نیکه گنی تر ټولو لوی معیاری واحد دی او کور تر ټولو کوچنی، هر کال دپچی‌له‌مخی پردغوواحد ونوباندی دزیی (خیل) ټا کلی مځکــه ویشله کیږی او د هر واحد حاضروغائب نر گاړی ټول برخه پکښی لری، هر نرچی مړ سو، مځکه یی دزیی ملکیت گرزی او میراث خواره برخه نه پکښی لری.

په ښوراوك کی د ویش دود دری‌ډوله دی :

**۱ـ د خوله ویش دود :**

دبریخو په زکو زیو او منډو زیوکی خو له ویش باب دی ، هر کال دعشیری ټاکلی گډه مځکه دعشیری‌پر ژوند یو نر گاړو ویشله کیږی که څه هم دغه نر گاړی د ویش ترورځی یوه ورځ د مخه زیږ یدلی وی، ښځمنی په گډه مځکه کی برخه نه‌لری .

**۲ـ د ملاتړ ویش ود :**

د بریخو په بد لزیو کی ملاتړویش‌باب دی ، هلك چی دوولس کلن سی د ملاتړ په نامه یادیږی یعنی د توپك یاتوری د استعمال وس لری اوپه جنگونو کی د خپلی زیی (خیل) ملاپه‌تړله کیږی، بد لزی په ویش کی تر دوولسو کالو کښته نر گاړی ته‌مځکه‌نه ور کوی .او ښځمنی هم‌د عشیری په گډه مځکه کی برخه نه لری .

**۳ـ د آس دود :**

پخوا د یر غلگرو څخه د ښوراوك‌د ساتنی له پاره د بریخو هری زیی (خیل) پنځوس آسه‌ساتل، هربریخی‌چی به ددغه قبیلوی تشکیل له مخی

د خپلی خاوری د ساتنی له پاره آس‌ساته ، هغه ته هم په ویش کی‌دآس دود په نامه څه مځکه ور کول‌کیدله،هر چا چی به هغه آس پربل برېڅی خرڅ کړ ددغه آس دود (مځکه) به‌هم‌دآس درانیو ونکی وه .

د هر زیی دغه پنځوس سپاره به‌هر وخت له پر دیـو څخه د خپلـی خاوری ساتنی ته چمتو وو، کله‌چی‌به دوی د فاع ونه‌کړای سوه ، نوبه نور برېڅ ځلمی په چیغــــه د دوی‌کومك ته ور تلل .

اوس د ښوراوك په برېڅو کی د آس دودنسته .

په ښوراوك کی د مځکی خرڅلاوهم باب نه دی دا ځکه چی مځکـه ټاکلی خاوند نه لری ، یوه مځکه یوکال دیوه ده بل کال د بل ، دویش دود له امله د مځکی د میراث دعوی‌هم په ښوراوك کی نسته .

دکتور روان فرهادی

# احوال شیخ بستان در منزل های عرفان

دریغ آنکه در بارهٔ شیخ بستان بریخ علیه الرحمه اسناد مفصل تاریخی بدست نداریم ، البته آنچه‌در بارهٔ وی میسر می باشد باز هم غنیمت است .

«بستان الاولیاء» که پته خزانه‌ازمو جود یت آن بما خبر می دهد، تا به عهد ما نرسیده است .

آنچه در پته خزانه درج شده‌بشمول قطعهٔ شعر وی، و آنچه در مخزن افغانی نعمت الله هروی آمده‌است وآنچه‌در تاریخ مرصع‌میخوانیم بسیار ارزشمند است . بهم آوری‌این همه مواد ، خبری از شور عشق معنوی دردل شیخ بستان بمامی‌دهد.درینجا سوال میکنیم که آیا این‌پرتو مهر حق، شیخ بستان را در حالت‌بیخودی و سکر می داشت ویا آنکه بمقام آرامش رسیده بود ؟

از پارچهٔ شعر واز باقی آنچه درپته خزانه آمده، روشن می شود که شیخ بستان‌سالك شوریده حال‌بود.از آنچه در مخزن افغانی می خوانیم برمی آیدکه شیخ بستان در شوریده‌حالی معطل و متوقف نمانده بود ، بلکه سر انجام اورا آرامش روحانی‌نیز نصیب شده بود . نیکوست که بااین دو حال‌اوآشنایی بهم رسانیم.

**شوریده حالی شیخ بستان :**

اینکه صاحب مخزن افغانی اورا«سوختهٔ نار الله» می گوید ، حاکی

از آن است ، که از حال وی نشانه‌های مقام های شوق وقلق وعطش هویدا بود ، که همه از پی آمد های‌مهر است . سو ختگی هم‌معنی فناء را می د هد که منزل پیشرفته یی‌است در منازل سلوك. خود وی میگو ید :

دمینی اوردی زړه وریت په انگار کینا،

ښی تارو نار کینا !

از نگاه احوال روانی ، تصدیق‌این مطلب در تو سل شیخ بستان، به طرز شعری مردم یعنی «بدله»می‌باشد . «بدله» شعری است که‌منشاء قدیم دارد و میتوان ریشهٔ آنرا حتی‌در او ستاو اشعار زبان های پیش از اسلام جستجو کرد و بحســاب‌عروض از نوع (مستزاد) است و در دری گفتاری هم موجود میباشد ، چنانکه در زبان گفتاری کابل :

مه که عاشقت شدم ، سیبه سرم‌وار کدی ،

دلم او گار کدی!

«بدله» در زبان‌دلداد گان جوان ،ندای شوق‌و هجران است . اینکه شیخ بستان این طرز را بر گزیده‌است تاثیر نیرو مند ناحیهٔ قند هار وهلمند و شوراوك رابروی نشان می دهد که سر ز مین کودکی ونوجوانی او بود . اینکه درهمه زندگی‌ناله بر می کشید، وبه زاری آواز و سرود می خواند، نشانه حالت عطش‌است . زاری کودك به پدرو مادردر طلب‌چیزی،درآن سالیان‌ناز پروردگی‌اثری برآدمی میگذارد که در مقام التماس تا روز] گار سالمندی و سالخورد گی بجا می ماند ، ایــن احوال رادرسرتاسر پارچه شعرشیخ‌بستان میتوان در یافت و از خلال گواهی نعمت الله هروی میتوان بان‌نگریست .

خواجه عبدالله انصاری هـــروی‌علیه الرحمه (۳۹۶ ـ۴۸۱ هق) در «منازل السایرین»، درجهٔ‌بلندترشوق‌راچنین ترسیم کرده بود:

پس بنده دل بند د به صفـــات‌مقدس خدای و مشتاق گرد به معاینهٔ لطایف کرم او و نشانه های مهربانی‌او وعلا مات فضل او واین شوق را:

ـ مهربانی ها آرام کند ،

ومسرت ها آشوب برساند، و شکیبایی باآن بستیزد .

(منازل السا یرین ـصفحه ۱۵۷ ،چاپ کابل ـ۱۳۵۵ ).

این است احوالی که درین پارچه‌شعر و نیز در سر گذشت شیخ بستان در می یابیم . نشانهٔ دیگر درآن خطاب به دلدار است ، با همان لهجه که به دلدار آدمی خطـــاب‌می شود . ازین نباید در شگفت‌آمد، زیرا در میدان بیان عشق روحانی،چاره یی نیست . دلدار را با یـد با همین زبان خطاب کرد تا د لسو ختگان عشق مجازی بان پی بر نـد، وهمین دلسو ختگا نند که روزی به‌دلسو ختگی عشق حقیقی میر سند ، اگر توفیق مهر یزد آن دستگیر و راهنما ی ایشان شود .

پس وقتی که در ین « بدله» می‌خوانیم : «راسه گذر که پرما» گویا معشوق آدمی زاد را تصور سی کنیم،اما این تصور ظاهری است وشاعر خود آنرا در بیت های‌ما بعد تفسیرمی کند :

دخوږو زړو له حال ته‌یی ای‌باداره‌آگاه

یی دبی وزلوهمراه

درینجا خطاب حقیقی به دلدار حقیقی است که پرده از روی‌سخن ظاهری برمیدارد و مقام معنوی آنراا‌شکار می کند.

این بود آنچه‌در باره شوریده‌حالی‌شیخ بستان دریافتیم ، که آنـــرا نعمت الله هروی «صاحب درد» بودن‌وی نامیده ، وخبر داده که چشمانش هر گز از اشك خشك نبودی و پیو سته بآواز حزین شعر خواندی و انست همان حالیکه در شعر او می‌خوانیم وآن سو ختن در آتش، ناله وزاری پیوسته وآرام نداشتن است.بانگاه ژرفی در می یابیم که‌دلدار بالاخره بر دلداده گذر میکنـــد و شوریده حالی اورا آرامشی در پـی است

**شیخ بستان‌در مقام آرامش :**

چنان‌نشدکه شیخ بستان منصوروار در مقام سکرو شورید گی بماند ویا بطوری «مجذوب» گردد که‌فرزانه‌نباشد در ینجا هم شهادت «مخزن افغانی» قابل استناد است : شیخ‌بستان پیشهٔ بازر گانی داشت. با اند کی دستما یه مبلغـــی نا چیزبدست می آورد تاآن وجه حلال‌باشد زیرا لقمهٔ حرام بر چشم صو فی‌پرده‌کدورت می افگند ، در یك شهرهند جاگزین نبود واز دیاری به دیاری‌می رفت تا «آثار قدرت» رابنگرد ، واین مشا هده آثار قدرت ازوجایب‌مومن است بحکم کلام الله شریف.

در آن سالیان احوال صوفیان مقیم هند را بخاطر بیاریم .

طریقت خواجگان را که آنرا بهاء الدین نقشبند «متوفی ۸۹۱هق
بنیان گذاشته بود وارشادخوا جه عبدالخالق غجد وانی ( متوفی ۱۱۷
هق) را تکرار و تذکار می نمود وآن هشت اصل دارد : ۱- هوش دردم
۲- نظر بر قدم ۳- سفر در وطن ٤-خلوت در انجمن ٥- یاد کرد
٦- باز گشت ۷- نگهداشت ۸ یادداشت .

ودر بیان « دست در کار، ودل بایار » از زبان سالك آمده است :

از برون ، در میان بازارم وزدرون ، خلوتی ست بایارم

( رجوع به «طریق الارشاد» میافقیر الله جلال آبادی علیه الرحمه
(متوفی ۱۱۹٥ هق) ص ۹۷ در بیان این احوال صوفیان).

برینکه شیخ بستان خود پیرو نقشبند یه بوده سندی نداریم اما
سلوك اویعنی کسب وسیلهٔ زندگانی ولقمه حلال از راه بازرگانی ، رفتارو
شمایل او را مانند اهل طریقت خواجگان می نمایاند .

د ر هر شبا روز پانزده سیپاره تلاوت قرآن کریم ، برای کسی که
مصحف شریف حفظ ویا تقریباً حفظ اوشده باشد در حدود پنج ساعت را
ایجاب می دارد واین نظم زندگانی، ثابت میکند که شیخ بستان ، باهمه
گریه و زاری در راه عشق کرد گار ازنوع قلندرو ملنگ وملامتیه نبود.

اینکه نعمت الله هروی در سفردریا شب وروز بخدمت او بود، واقعاً
جالب توجه است ، اشاید این سفردریا از یك بندر هند تابندر دیگر
در همان سر زمین بوده ، وآنهم غالباً در کرانهٔ گجرات . نشانهٔ آرامش و
طمانینهٔ شیخ بستان را درین احوال در می یابیم: کشتی طوفانی ومشرف
برغرق شدن شد، همه سر نشینان فریادمیکردند ومی نالیدند . شیخ بستان
آرام بود و چون نعمت الله اورا بااین اطمینان دریافت در تعجب افتاد ، و
سر انجام کشتی به ساحل رسیدوکشتی غرق نشد . نعمت الله به کرامات
شیخ بیشتر معتقد گشت .

حقیقت آنست که شیخ بستان هر روز در چندین رکوع کلام الله
می خواند که چسان کشتی نشینان درورطهٔ غرق و هلا کت ناله وفریاد
می کنند، و چون به ساحل عافیت می رسند، خدای را ازیاد می برندو
در ذکر او غفلت می کنند. وی خود ، پیوسته می زارید و می نالید تاا

ذکر حق‌دمی غافل نگردد، ودر ساحل‌هم از جملۀ سبکساران نباشد کـه حافظ شیرازی از نادانی ایشـــــان‌شکایت کرده است .

می رسیم به لمحۀ یقین یعنی دم‌مرگ. در اینجا کمال آرامش روحانی این صوفی صاحبچشمان گر یه آلودرا تحسین می کنیم : وی در صحو بودونه در سکر ، در اتصال بودونه‌درانفصال، در تحقیق بود ونه در تلبیس ، در جمع بود نه در تفرقه.گفتۀ مولانا جلال الدین بلخی‌رابیاد می آریم :

بروز مرگ چو تابوت من روان‌باشد
گمان مبر که مرا درد این جهان‌باشد
جنازه ام چو نبینی مگو :فراق،فراق
مرا وصال و ملاقات آن زمـان‌باشد !

نعمت الله هروی می‌نویسد :

«به احمد آباد گجرات رسیدند.روزی بمن فرمود ند که وقت من به آخررسیده ... به تجهیز وتکفیـــن‌خواهی پرداخت ...»

این وفات، جمعه ۷ ربیع الثانـــی‌سنه ۱۰۰۲ واقع شد که بحســاب قمری از آن چهار صد سال میگذرد.

این تاریخ معادل‌ماه جنوری۱۵۹٤می شود.مو سمی که اقلیم هندگوارا و معتدل است .

**نتیجه :**

شیخ بستان در مقام های ریاضت‌وزهد می‌زیست ، احوال رغبت و شوق، اورا شوریده حال می کرد،از آن بود که چشم گریان داشت، وبه درگاه «بادار» زاری می کرد تابروی گذری کند. «بادار» زاری اورا شنیده بروی گذری کرد، چنا نکه حالت «سکینة» و مقام «طما نینت» نصیب او شد .

خواجه عبدالله انصاری در منازل‌السایرین می فرماید :
سکینة ، گاه گاه باشد ،
طما نینت هر گز از صاحب خودزایل نشود.
درجه نخستین : طما نینت دل است باذکر خدای
وآن، طمینا نینت یافتن ترسنده‌است، از روی رجا
وطمینا نینت یافتن ناشکیباست،ازروی پذیر ش حکم .

د «پرېښ» ليکنه

# شيخ بستان برېڅ

## او دده

# بستان الاولياء

**دبستان ونې مې واړه پيوندي دي**
**حقيقت مې له مجاز سره پيوندکړ**

په «روه» کې يې ستر ګې وغړولې ځوان شو !
په ځوانۍ کې له کوره ووت سرګردان شو !
دتجارت په جامه کې د ملکونو په لټه روان شو !
مال يې تر بېوزلو او غريبا نو قربان شو !
لېدې تجار ته دده ګټه په اوښکو لوند ګريوان شو !
وصال يې په برخه شو، په مخه کې يې هجران شو !
حق ته ورسيد، پوه شو، پوخ شو، ملد جانان شو !
په «روه» کې يې ستر ګې وغړولې ځوان شو !
په «هند» کې يې ساه ور کړه ظاهري تن يې په ګورستان شو !
او پاك روح يې عليين مکان شو !
فاني و، تل باقي شو، بستان و، شيخ بستان شو !

* * *

(۱)

## شیخ بستان بړیځ

د هیواد لوی عارف، پیاوړی‌عابد،خوږ من زا هد او اور ژبی شاعـــر شیخ بستان بړیځ موږ د دوولرغونوباوری متنو نو له خولی پیژنو :

یو یې په «روهستان» کی موږ ته‌راپیژنی او بل په هندو ستان‌کی یو یې د ژوند یوه برخه څیړی اوبل‌بله ، یو یې داو بنکو مرغلری یادوی او بل یې د شعر مرغلری رارسوی .په مجموع کی دواړه اخځو نه دده‌په باب زیات معلو مات راکوی ځینی‌مواد یې له یوه نه تر لاسه کیږی‌او ځینی له بل نه خو ځینی یې داسی‌مواد دی‌چی‌په دواړوا خځونو کی‌یو دبل خبره بشپړ وی او یو دبل‌وینا تایید وی . دا دوه اخځو نه یو د نعمت الله هروی مخزن افغانی او بل‌د محمد هوتك پټه خزانه ده .

مخزن د ده په باب لومړی ماخذدی او دقیق. ځکه د مخزن مولف‌ل شیخ بستان سره شخصا تر یونیم‌کال زیات وخت تیر کړی، دده د ژوند ورو ستی شیبی یې لیدلی اودده خوارق او کرا مات یې‌تر سترگو لاندی تیر شوی دی .

مخزن په شمیر لی ډول د شیـــخ‌بستان بړیځ په‌باب دا لاندی‌معلومات راکوی :

۱ـ دی لوی عارف ، د مینی پـــه‌اور الوی او د وحدت په سیند کی ډوب شوی و .

۲ـ په قام بړیځ او دځوانی په‌پیل کی له روه نه هندو ستان ته تللی و او په (سامانه) نو می ځای کـــــی‌او سیده .

۳ـ ځان یی د سودا گری په جامه‌کی پټ کړی و ، ډیره لږ پانگه یی درلوده، چی شرعی بیه یې پـــری‌کوله ، خپله حلاله گټه‌یی داړتیاو په لار کی د شرعی سره سمه ویشله‌اوله بی وزلو او اړو کسانو سره یی مرسته کو له .

٤ـ د سوی او مینی خاوند و ، سترگی یی هیڅ وخت له اوښکـــو څخه وچی نه وی ، دو مره درد یی‌درلود چی فکر دی کاوه د ټولی‌دنیا غم او کړاو یی دده‌زړه ته ورسپارلی‌دی ، هره گړی به یی له سوی زړه څخه سوی اسو یلی راوتل .

۵ــ له دی درد سره، سره یی هره ورځ پنځلس سیپاری قرآن کریـــم
تلاوت کاوه او په دوو ورځو کی یی د قرآن ختم .
٦ــ ځینی پښتو شعرونه یی پـه داسی غمناك او موثر غږ ویل چی
...زه به یی په ژړا راوستله اواوښکی به یی له ستر گو بهید لی .
٧ــ د شپی په پای کی به یی چی یو پهر شپه به پاتی وه او دس تازه
...، خدای سره به مشغول شـــــواو هرو پنځو لمو نځو نو ته به یی
...ری او دس کاوه .
٨ــ د (گوه) بندر له یو نیم کلن سمندری سفر نه ورو سته په احمد
...اد کی دینی په اسهال ا خته شواودمخزن مولف ته یی د خپل تکفین او
...جهیزو صیت وکړ .
٩ــ په پای کی دی د ١٠٠٢ هق کال د دوهمی خور په اوو مه نیټه د
...معی په ورځ د لمانځه په وخـــت وفات شو .
١٠ــ د مخزن مولف په پر دیسی کی د غریبانو په هدیره کی په یوازی
...ان خاورو ته وسپاره او په مړینه یی هم ډیر خوارق تری ولیدل .
١١ــ دده ډیره لږه پاتی شتمنـــی چی تجارت یی پری کاوه د مخــزن
...ولف د دوی له خلکو ښځه یو چاته وسپارله چی دده زا منو ته یـــی
...رسوی
په همدی تو گه د مخزن مولف له ده سره یو نیم کال په سمندر کـــی
...سفر کړی او د (گوه) بندر ته ورسره تللی و چی شپه او ورځ ورسره و
...و زیات خوارق یی تری لیدلی دی،دی وایی چی یوه شپه په سمندر کی
...ویان پاڅید چی ټولو له ژوند ه لاس وولل او لوی خدای ته پـــه زاری
...وخت شول ، زما چی له ده سره داخلاص اړیکی وی عرض می ورته وکړ
...چی د مرستی وخت دی ، ده موسکاوکړه اوویی فرمایل خاطر جمع اوسه
...چی خطر نشته ، له دی خبری سره تویان کښینو ست او کښتی له خطره
...چ شوه. همدا راز دی لیکی چـــی دخپل مرگ خبر یی تر مړینـــی
...راندی را کړ او دی وایی چی د دفن په وخت می یی هم له خولی ښځه د
...رآن تلاوت اوریده او سورة کهف یی وایه چی زه دی پیښی بی هوښه
...کړم کله می چی تر په هوښ کیدلو ورو سته په قبر کی کیښود بیا یی
...سونه ی خوځید لی او بیا می دشپی په خوب ولید چی په قبر کی هوساو

اوراته ډیی ویل چی سوال ځواب‌می‌په بری سره تیر کړ او اوس ډیر آرام دلته پروت یم ډاډه اوسه ! (۱).

پټه خزانه بیا دده په بـــاب دامعلو مات را کوی :

۱ـ شیخ بستان په قام بړیخ و.

۲ـ کور یی په ښوراوك کی و .

۳ـ پلار یی محمد اکرم هم‌دخدای‌ولی و چی بیا له ښور او که راغی او د هلمند پر غاړه یی په یوه کوډله‌کی ژوند کاوه او دخدای په عبادت به اخ و .

٤ـ شیخ بستان له پلاره فیض‌و موند .

٥ـ په ځوانی کی هندو ستان ته‌ولاړ .

٦ـ په هندو ستان کی‌ښد ار په‌ښار گر ځیدی او دقدرت آثار به‌یی تما شا کول .

۷ـ په ۹۹۸ هق کال وطن ته‌راغی.

۸ـ همدلته یی داولیاء الله په باب‌دبستان الاولیاء کتاب وکیښ چی د محمد هوتك پلار دا کتاب په‌ښوراوك‌کی د حسن خان بړیخ په کور کی لیدلی و اویاد دا شتو نه یی تری‌اخیستی وو .

۹ـ شیخ په دی کتاب کی د ډیرو پښتنو اولیاو حالونه ، کرامتو نه او خوارق عادات کښلی وو او خپل‌او دنورو ډیر ـ ډیر اشعار یی هم‌پکی رانقل کړی وو .

۱۰ـ پټی خزانی دده له کتابه دده‌خپله او د شیخ تیمن کاکړو ینا موږ ته را رسولی ده (۲) .

دشیخ بستان دژوندااوینا په‌باب‌مخزن افغانی او پټه خزانــــه دوه اساسی ماخذونه دی چی بیا دبستان‌په باب له مخزن څخه افضل خان ختك په تاریخ مرصع (۳) او لوی استاد پو هاند عبدالحی حبیبی دپټی خزانی په تعلیقاتو (٤) او نومور کی‌مور خین (٥) کی‌استفاده کړی ده او له پټی خزانی څخه لوی استـــادپوهاند عبدالحی حبیبی د پښتــــو ادبیاتو تاریخ په دوهم ټـــوك (٦)حبیب الله رفیع په پښتو پخوانـــی تذکری (۷)زلمی هیوادمل په‌فرهنگ‌زبان وادبیات پښتو (۸) کی اوډیرو

نورو آثارو استفاده کړی ده اود شیخ بستان احوال تری را اخیستل شوی دی .
په هر حال موږ ددی د واړو ماخذونو په رڼا کی د شیخ بستان بړیـــــخ (ژوند پاڼه) داسی تر تیبو لای‌شو:

شیخ بستان په قام بړیخ او په‌ښوراوك کی له محمد اکرم بړیخ‌کره وزیږیده دده پلار د خپل وخت ولی‌و چی دی یی له کو چنیتو بــــه تر روزنی لاندی ونیو او په‌ظاهری اوباطنی کمالاتو یی وپسو له ، له ده نه خدای دوست عارف او زاهـــــدجوړ شو، د ځوانی په اوایلو کـــی هندو ستان ته ولاړ ، په ډیره لږه‌پانگه یی دتجارت په پلمه د نـــړی سیر کاوه او ددی کار گټه یی په ییبی وزلو او هسکیر لو ښند له، دی په هند کی په سا مانه نو می ځای‌کی اوسیده .

په ۹۹۸ هق کال چی روه‌ته بیرته‌راغلی و بستان الاو لیاء یی وکیښ په بستان الاولیاء کی یی دپښتنو ولیانو او دحال خاوند انو احوالونه راغونډ کړل او غالبا دا به هغـــه‌کسان وو چی ده د خپل سیر او سیاحت په ترخ کی ور سره لیدلی‌اویایی نه حالاتو نه خبر شوی‌دی.
تر ۱۰۰۲ هق کال وړاندی یی په‌هند کی د (گوه) بندر یو نیم کلـــن سمندری سفر وکړ او داوخت یی‌دمخزن مولف د لاری مل او په خدمت کی و، تر سفر راوروسته د هند په‌احمد آباد کی دینی داسهال پــــه ناروغی ناروغ شو اوپه نتیجه کی د۱۰۰۲ هق کال د دوهمی خور پـــه اوومه نیټه‌همهلته ومړ او د مخـــزن‌مولف‌خاورو ته وسپاره .

دده پاتی شته د مخزن مو لف دچاپه لاس دده زامنو ته راو استول او دده کتاب بستان الاولیاء دمحمدهوتك پلار په ښوراوك کی له‌حسن خان بړیخ کره لیدلی‌او یاد داشتونه‌یی تری اخیستی وو .
نه دی لنډیز نه موږ د شیخ‌بستان‌دژوند په باب دا لاندی اټکلو نـــه هم کولای شو :

۱ــ د مخزن په وینا شیخ بستان‌په نوی ځوانی او دپتی خزانی پـــه وینا په ځوانی کی هند ته تللی چی‌موږ یی دده د ۱٤ کلنی او ۱٥ کلنی سن بللای شو او دا هغه سن دی‌چی‌ښایی ده به یا بیخی واده نه وکړی

او که کړی یی و زا من به یی نه وونو ځکه په دی تګ له روه سره دده رابطه نه ده شلیدلی او ښکاری‌چی‌پر ۹۹۸ کال سر بیره به ډیر ځله نو رهم روه ته راغلی او تللی وی‌ځکه‌ده په روه کی کورنی جوړه کړی وه او کله چی مړ کیده د فرزندانو تښتن‌و او نعمت الله دده پاتی شتمنی ورته رالیږلی ده .

۲ـ دی زړ بودی ته نــــه دی‌رسیدلی ځکه نعمت الله یی زړښت ته نغو ته نه کوی او هم یی مرګ‌دیوی آنی ناروغی له ا مله دی ، نعمت الله دا وخت هم دی دمرګ‌نه بو لی خودی د کرا مت له مخی ورته وایی چی زما د سفر وخـــت‌رارسیدلی دی او هغه وخت یی چی خښوی د نعمت الله غوږ ونو ته دقرآن تلاوت رسیږی او دده‌شو نډی دښور یدو په حالت کی وینی نوداوخت دی بیا هم شکمن کیږی اوفکر کوی چی ښایی سکته یی کړی وی،ددی ښښو له مخی ویلای شو چـــی شیخ بستان د مړینی په وخت دزړ بودی په پو له نه و ولاړ اوښایی د ۵۰ــ۶۰ کلنی تر منځ منځ وفات‌شوی وی چی په دی حساب دده د زیږیدو وخت د لسمی پیړی پـــه‌نیمایی کی ګڼلای شو .

۳ـ دده تر مړینی ورو سته هـــم‌دده کور نی په ښو راوك کی وه او هغه حسن خان بړیځ چـــی د محمدهوتك پلار دده کتاب ور سره لیدلی ښایی دده له اخلافو څخه وی چـی‌دده کتاب یی لکه چی دود دی له‌ځانه سره په میراثی تو ګه ساتلی وی.

## (۲)
## بستان الا ولیاء

. دپټی خزانی له وینا څخه ښکاری‌چی د شیخ بستان بړیځ بستـــان الاولیاء د پښتنو یوه ارزښتناکـــه‌تذکره وه چی د پښتنو ولیانـــو او لویانو ژوند پیژندنه او وینا پکـــی‌راغلی وه ، دا تذکره دده تر مړینی ورو سته د ښوراوك له بړیځانو کره‌خوندی وه چی د محمد هوتك پلار محمد داود هو تك هم هوری لیدلی‌وه .

دا تذکره، بستان شیخ هغه وخت‌چی تر هند اوروه پوری یی سفرونه وکړل، سیر آفاق اوا نفس یی وکړ،دتجارت په جا مه کی یی دقـــدرت تماشی و کړی او دولیا نو او لویانوزیا رتونه یی وکړل په ۹۹۸ هق کال

په روه کی وکښله او خپل روح یې ېری آرا مه کړ . دپټی خزانی په یوازینی خطی نسخه کی دشیخ تیمن کاکړ د پیژندنی په برخه کی دبستان الاو لیاء دلیکلو کال په هند ســـوباندی (۹۵٦) هم ښودل شوی خودا دکاتب تیرو تنه ښکاری ځکه زموږدخیړ نی له مخی په پورتنی سنه کی شیخ د ډیرکم سن دی اوهم دماخذو په صراحت ده په ځوانی کی سیاحت کاوه او دا کتاب دده داوږدو سفرونوگرځیدنو او گرو یږ نو محصول دی نو ځکه دا سنه سمه نه ده او دکاتب تیرو تنه یی بو لو خصو صا چی دده په برخه کی یی اصلی سنه هم قیدده .

د شیخ تیمن کاکړ او شیخ بستان بړیڅ تر دوو پاړ کو پر ته نورنود بستان الاولیاء کو مه نمو نه موږ ته نه ده رارسیدلی او هم یی د متن نثر زموږ په لاس کی نشته خو داسی اټکل کولای شو چی بستان الاولیاء په هم لکه دسلیمان ماکو دتذکره الاولیاءغوندی د پښتنو د هغو ولیانوتذکره وه چی د عر فان او تصوف په خم کی رنگ خوارہ او لـه سو زه ډك پاړکی یی هم درلودل (۹)

دا هم دبستان الاو لیاء په نمونه کی دشیخ تیمن کاکړیو خوږ پاړکی:

| | |
|---|---|
| گهیځ رڼا د لمر خپره سوه | زما پر کور دوېر ناره سوه |
| زړغ سو ناځاپه چی بیلتون راغی | دبیلتون ورځ توره تیاره سوه |

* * *

| | |
|---|---|
| په ژړا ژاړم څه ناوړ ین دی | زړه می له دی وېر نی شین دی |
| په زول نو لیږم چی تاخون راغی | زرغون له او ښو می سادین دی |

* * *

| | |
|---|---|
| نه به بیا یم نه بیاراســـــی | نه به تیاره شپه زما رڼا سی |
| نه به شهی را ته پخلا ســـی | بیلیږی پیریی اوس دیون راغی |

* * *

| | |
|---|---|
| د ښبتن پار دی هیرمی نه کړی | آغلیه مخ چی په یانه کـړی |
| اوربل دی پر یښوی واته کړی | پر ما د بل اور کړوون راغی(۱۰) |

**پایلیکو نه :**

۱ــ هروی ،خواجه نعمت الله بن خواجه حبیب الله : تاریخ خانجهانی و مخزن افغا نی ، د سید محمدامام الدین په تصحیح او تنقیح ،ایشیاتك

سو سا یتی ډاکه ، زیکو پریس ډاکه۱۹۶۲ ع، دو هم ټوك ۷۴۳ ـ ۷۴۶
مخونه .

۲ـ محمد هوتك بن داود هوتك: پټه خزانه ، دپو هاند عبدالحی حبیبی
په سر یزه ، سمون او نښلو نو ، عکسی چاپ ، د پښتو دپر مختیا او
پیاوړ تیاآمریت، داصلی نسخـــی۲۶ـ ۲۹ مخونه، کابل دولتی مطبعه
۳ـ افضل خان خټك بن اشرفخان هجری بن خو شالخان خټك : تاریخ
مرصع، دارو انباد استا د کا مل مومند په سر یزه، سمون او نښلونو
یو نیو رستی بك ایجنسی، پیښور، ۱۹۷۴ ع .
٤ـ محمد هوتك : پټه خزانه ، دپو هاند عبدالحی حبیبی تعلیقات ،
عکسی چاپ ۱۷۳ ـ۱۷۵ مخونه .

۵ـ حبیبی ، پو هاند عبدالحی : نو مور کی مور خین، د فلا لـــوژی
پو هنځی ، ۱۳۵۹ ش ، ۱۲ـ۱٤ مخونه. په دی اثر کی پر مخـــزن
سر بیره لــه پټې خزانی څخه هــم استفاده شوی ده .
٦ـ حبیبی ، پو هاند عبدالحی : دپښتو ادبیاتو تاریخ، پښتو ټولنه
۱۳٤۲ ش دو هم ټوك، دو هم چاپ۱۹۷ ـ۱۹۹ مخونه .
۷ـ رفیع، حبیب الله : دپښتو پخوانی تذکری ، د افغا نســـتان
اکاډیمی د تاریخ او ادب ټو لنه ، ۱۳۵۰ ش، ۳۱ ـ۳٤ مخونه .
۸ـ هیواد مل، زلمی : فر هنگ زبان وادبیات پښتو ، وزارت تعلیم
وتر بیه ریاست تالیف و ترجمه ، ۱۳۵۶ ش، ۷۶ مخ .
۹ـ د بستان الاولیاء د زیاتـــی پیژ ندنی له پاره و گوری : دپښتو
پخوانی تذکری .
۱۰ـ پټه خزانه ( عکسی چـــاپ )۲۷ ـ۲۸ مخونه .

خیر ندوی دوست شینواری

# دشیخ بستان بړیخ د بدلی څو لغتونه

دشیخ بستان بړیخ دیوی خوږی‌بدلی په لوستلو سره انسان ته ډیر ارمان ور شی چی کا شکی د دغه‌خوږ ژبی عارف شاعر په څو نورو اشعارو هم د پښتو د ادب پانګه‌بډای وای خو بیا هم د پټی خزانی د مولف دی جنتو نه په نصیب شی‌چی د ده په برکت دغه یوه بد له‌که څه‌هم‌دخرګندوی‌په‌توګه ده خو زموږ‌ترو خته یی را رسولی او د پښتو د ادب په زیرمه کی به د تل له پاره‌خوندی وی .

زه د دغی خوږی بدلی په ادبی اړخ باندی څه نه لیکم ، بلکی یوازی د هغی په ژبنی خوا باندی څه رڼاچوم .

په ژبنی لحاظ دغه بدله په روانه او سلیسه ژبه لیکله شوی ده.! له (تهینکاونه) څخه پر ته نور داسی‌متروك او له محاوری لویدلی لغات نه لری . البته د (ګوا ښل) فعل هم‌دلته په عامه معنا (منع کول) را غلی دی چی خبری پری کیدای شی. له(پر ، راسه .کینا = کی جمع نا) څخه پر ته چی د پښتو د لویدیځی‌لهجی خصوصیات دی نور په دغه بد له کی کوم څرګند لهجوی خصوصیات نه لیدل کیږی .

د لغوی زیرمی په لحاظ دلته څوکلمی شته چی باید لږه خاصه پاملرنه ور ته وشی او هغه دا دی :

**۱ـ تهیکاونه :** (توقف، سکونت‌آرام) په معنا د شیخ بستان بړیخ‌په بدله کی داسی راغلی دی .

یوان مې چیری نه آرام نه‌ټیکاو نه‌وینم ، نه را حت کړنه وینم
اوښکی‌مې څاځی پر گریوان یو وار نظر که‌پرما ــ راسه گذر که پرما

دغه فعل د پښتو په کلا سیکـــوادبیاتو کی په همدغه معنا زیات د (ټیکاو) په لیك دود راغلی دی لکه:

که چیری مل شی د ناقابل سره
ټیکاو (۱) یی نه وی رخصت تـــری‌تل غواړی (خو شحال رباعیات)

په یوه ځای یی ټیکاو هیچیری نه‌شی
لکه سیوری خواو شاده دا دنیا(حمید)

هیڅ ټیکاو می چیر ته نه شی
که وغره ته اعتماد کړم (حمید)

د مقصود مارغه ته دام د عقل څه‌بدم
په هیڅ ډکی ټیکا ونه کاسورلکی‌دی (علیخان)

لکه راغلل له‌عد مه هسی لاړل
یو زنده په دا فانی نشته ټیکاو(اشرف هجری) (۲)

ددغی کلمی ریښه (ټیك) دی چی‌پښتو قا موس د (آرامی ،توقف) په معنا ا خیستی او له دغی ریښی څخه‌یی (ټیکاو ، ټیکاونه ، ټیکاوول ، ټیکا ویدل) ا خیستی دی .

**۲ــ گواښل** : (الف د نښتی په‌وخت کی د جگړ مارو سره بیلول، ب، تهدید ول ، اخطار ورکول) په‌ختیځه لهجه کی په دواړو معنـــاو استعما لیږی .

په لو یدیځه لهجه کی یوازی په‌لو مړی معنا استعما لیږی .

د شیخ بستان بړیڅ په بدله کی‌په لو مړی معنا راغلی خو مفهوم یی څه اندازه عام (منع کول) دی:

د خپل عزت په‌روی بستان ته‌کړه‌دمهر ښندل ،
کړه یی له گنا هه گواښل .

د پښتو په ک لاسیك ادب کی غالباً په دویمه معنا په دی ډول‌راغلی دی :

نښتی زړه ارجل بر جل په‌دام دزلفو
په دروغو کړی پر هیز ته ځـــان‌گواښی (حمید)

چی گوانبی را ته مدام دغمزوتوره نیك خصلته دلرو با غریب نوازه
(حسین)

د حمید په اشعارو کی خو ځایه(گوانښ گیښ) یو ځای راغلی چــی
(گیښ) یی لفظی تاکید دی.

که یی سل خوازه د حسن پـــــه گوانښ گیښ شی
بند په بند بهلکه بندد گنی زبیښ شی (حمید ــ ترکیب بند)
عاقبت پهبندد زلفو بند یوانبوتلمسرو ستر گو
کههر خومی شوو روړاندی صبرزهد په گوانښ گیښ (حمید)
یار له باره سره کاندی رابطه داخلاص پټه
بیگا نهوو سره کیږی په ځرگنده گوانښ وگیښ (حمید ،ادبی ستوری)
پــه لو مړ ی معنا یی کیدای شـــیزیښه د (گوښه ، گوښه کول) سره
یوه وی .

**۳ــ او ښکه او ښه :**

دشیخ بستان بړیځ به بدله کیخصو صاً او د پښتو په زړو اشعارو
کی عمو ماً دغه کلمه د نظر وړ ده .

دا کلمه د شیخ بستان بړیځ پهبدلو کی د (اوښکی) پهلیك دود
راغلی ده :

او ښکی می ځاځی بر گریوان یووار نظر که پرما ،
راسه گذر که پر ما .

زه داسی فکر کوم چی دا کلمه بهاصلا (اوښی) وی ، نه (اوښکی) او
دا به د کاتبا نو د قصدی یاسهویتحریف له امله (اوښکی) شوی وی
ځکه چی :

الف ! ترخو چیدپښتو دکلاسیکوادبیاتو خورالر غونو قلمی نسخوته
مراجعه کوو هلته گورو چی د(اوښه)کلمه د (ك) توری نه لری .

مثلا د خو شحال ختك پهلومړیقلمی نسخه کی هر ځای (اوښه) ده،
خو ورو سته بیا کا تبانو (اوښکه)کړی ده لکه دغه بیت :

دښو او ښی می پاسه پری تارونه

بیلتا نه په تن په مثل د طنبورکړم (۳)

نو دا چی د رحمان بابا، حمید اونورو پخوا نیو شاعرانو په متونوکی

(اوښکه) راغلې زه فکر کوم دا به دکاتبا نو تحر یف وی . رحمان بابا داسی راوړی :

اوښکی نه‌لری‌حساب زمادسترگو
بیحسابه شو سیلاب زمادسترگو

حمید ما شو خیل وایی :
ځکه ما ښخه آرام د قرار ورکشو

چی‌می او ښکو کړ دصبر خانمان‌ړوب .
(اوښکه) دشیخ بستان د لهجوی‌خصو صیت زیږ نده نه شوو بللی، ځکه چی د لویدیځی لهجی په لرغونواشعارو کی هم (اوښه) راغلی ده:
د شیخ اسعد سوری په‌قصیده کې‌دری ځایه :
له تیر یو دی او ښی ځاځی لـه‌اوریځو
چینی ژاړی په ورځ ورځ ستا له‌شنار
گوره ځاځی زړی او ښی له دی‌غرو نو

دا کړو نگی ساندی لی په‌شورهار
د پسر لی اوره تودی او ښی توینه
مرغلری به نیسان نه کړی نثار
د ښکار ندوی په قصیده کی :
سپینی واوری ویلیده کانـــدی‌بهیږی
لکه اوښی د مین په گر یوا نونه
دشیخ تیمن په شعر کی :

زرغون له او ښو می سادین دی.
په نول نو لیږم چی تا خون راغی.
ب: ددغی کلمې نسبتی فورم (اوښلن) دی نه (او ښکلن) لکه د حمید په کلام کی :
وچ گوگل ، او ښلنی ستر گـی‌گونه زیړه .
گو ښی گو ښی کړی زما په آشناعرض (درمرجان)
بی زما اتشین آه‌او ښلنی سترگی
نه یی شته بل آب‌و تاب د حسن‌کف (ادبی ستوری لو مړی ټوك۲۱۹ مخ)

ج: که څه هم په زیاتو اریانـــی(فارسی ، پا میری ، خوارزمی ، سوغدی او ساکی) ژبو کی د (ك) غږ لری خو په خپله لرغونی آریایی پښه کی چی په لرغونو آریایی ژبو(اوستا، لرغونی هندی) کی ساتل شوی د (ك) غږ نه لری (٤) دپښتوژبی یو لوی خصو صیت دادی چی تر یاتی اندازی یی د لرغونو آریایی‌ژبو خصو صیات ساتلی دی .

دپور تنیو دلیلو نو له مخی زه‌فکر کوم چی‌په دغه‌بدله کی (اوښکه) په دکاتبانو له خوا اوښتنه وی .

پښتو قاموس دواړه فور مو نـه‌اخیستی دی .

٤ـ زما: (اضافی مفرد ضمیر) :بله کلمه چی‌د شیخ بړیخ په بدله‌کی زمونږ توجه ځان‌ته جلبوی هغه د(زما) په تلفظ کی تشتت دی :

یو ځای (زما ،د (ز) په سکون Zma راغلی دی :

د مینی اوردی زما زړګی وریت په انګار کینا،

ښه یی تارو نار کینا

بل ځای (زما) د (زـ په زوره‌کی Zama راغلی دی :

وکه نظر زما پر حال چی پروت‌رنځور یمه تل ،

په ویر ناسور یمه تل

دتلفظ همدغه تشتت د نـــوروشاعرانو په کلام کی هم لیدل کیږی:

دوه ځایه دشیخ تیمن په شعرکی:

ګهیخ رڼا د لمر ښکاره سوه

زما په کور دویر ناره سوه

نه به بیا یم نه به بیا راسی

نه به تیاره شپه زما رڼا سی

د پخوانیو شا عرانو پـــه آثاروکی غالباً د (ز) د زور کی په تلفظ ده لکه :

ته خو اوس له مانه لاړی مرور شوی

دا زما یاری دی هم‌ګوندی پـه‌زړه‌شی (خو شحال ختك)

سر زما ، سا مان زما ،ځار شه‌تر جانان‌ز ما

ځار شه تر جانان زما سر زمـــاسا مان زما (رحمان بابا)

البته د همدغو پښتانه شاعرانو په آثارو کې په دواړو تلفظو نولیدل کیږي . مثلا د رحمان بابا په یوه بیت کې دوه تلفظه :

زه مکتوب غوندې په پټه خولــه گویایم
خاموشي زما تیري کاتر غوغازما

زما په نظر ددغې کلمې اصل (دما) دی چې د خوشحال په لومړي قلمي نسخه او د خټکو او ځینې نورو په قلمي پښتوانیو نسخو کې همدا سې ثبت دی او همدا رنگه د پښتو په ځینو لهجو کې په همدغه غږ اوریدل کیږي چې (د) یې داضافت ادات دی.

او په دغه اساس ددغه ضمیر غږ اصلا (زما) د (ز) په زوره کې دی. او عجیبه لا دا ده چې پښتو قاموسونو یوازې د (ز) په سکون اخیستی دی نه په زوره کې . (وگ: پښتو قا موس او پښتو ،روسي قاموس مولف اسلانوف)

**٥ــ راسه ،رایسه ،راشه ،رایشه:** دغه فعل شیخ بستان بړیځ داسې راوړی دی :

او ښکې مې څاڅي پر گریوان یووار نظر که پر ما ــ راسه گذر که پر ما
د (راتلل، راتگ) څخه د امر (او همدا رنگه د مستقبل) په فورم ددغه فعل په استعمال کې هم د پښتو په بیلو بیلو لهجو کې تشتت لیدل کیږي او په پاسنیو څلورو غږونو اوریدل کیږي .

د کندهار خلك (راسه) ځینــــې غلزي قو مونه ٥ (رایسه) او (راسه) په ختیځه لهجه کې (راشه) او (رایشه) اوریدل کیږي .

په کلاسیکو ادبیاتو کــې غالباً د (رایشه) په فورم ثبت ده لکه :

رایشه رایشه محبو با
ته له خدایه غو ښتي ما (احمدشاه بابا)

د حمید محموده رایشه پخپلــــه* کمیني لره کمال زمایازه را (حمید)
دغه فعل زما په نظر له دوو برخــو مرکب دی :

(را ور ، در) سمتي ضمیر ــ ایسه (ایسیدل) چې پښتو قا موس د (ښکاره کیدل ، نمو دار شدن) په معنا اخیستی دی .او په دغه اساس زما په نظر ددغه فعل اصلي تر کیــــب (رایشه) دی چې په ماضي مطلــق فورم کې یې (راغلل) دی چې هغه هم دغه شان مرکب فعل دی (را=

سمتي ضمير + اغلل ـ ښکاره کيدل خرگند يدل )(قاموسونو اغلي يوازي دښکلي په معنا ا خيستي دي چي دايي د و يمه معناده )څومثالونه يي دادي:
ديوسف گجاوه راغله
نها يت ښايسته اغله (دعبدالقادر يوسف او زليخا)
موسى خواست وکړ لـه خدايـه زما خدا يه را تهوا يـــه
چي د عرش تر سا يه لا ندي څوك به وي چي را حت كاندي.
د مو سى وينا ښه اغلـــه دا ندا په موسى راغله (فضل نامه)
له حجا زه دلي را غلـــي په خپل قوم کی ښه اغلي (گگيانې)
شيطان بيا موند قابو راغي
نور يي مخ دده بداغي (دحميد شرعت الاسلام)
دی تري وجار ووت نور کوز ورته زر راغي
د مسجد خلکو ته ستوري په رنگ اغي (دجهاندار شهزاده قصه ٦٢ مخ)
بل دا ناور باندي راغي
چي دا کار يي نه ښه اغي ( دخوشحال اخلا قنامه ـ ١٣٢٦ بيت)
په دغــه ډول د (را اغـــلـــل ) او (را ايسيدل) تر منځه د لنډي پرتلني او له پور تنيو نورو د لايلو له مخي زما په نظر ددغه فعل ايتيمو لو ژيك اساس له دووبرخو (را + ايسيدل) څخه مرکب دی او پر (راسه، راشه) (رايشه) قدا مت او اصالت لري .

**٦ـ نا (دترنم له پاره):**

د شيخ بستان بړيځ په خوږه بدله کی ( نا ) داسی راغلی ده :
د ميني اور دی زما زړ گی وريت په انگار کينا،
ښه يي تارو نار کينا.
دلته د تر نم له پاره ( نا )چي د(نه) پــه غږ هــم زيات ليدل کيږي موږ ته د پښتو دا دب ډير لرغوني خصو صيت را په زړه کوي . په بل عبارت داتر نمي غږ موږ ته دپښتو دادب هغه پړاو رايادوي چي د پښتو ليکلـي ادب لاد اولسي (فولکلوري)ادب تر اغيزي لاندي وو .
څو مره چي موږ د پښتو په اولسي ادب کی څيړنه کوو هلته گورو چي ددغه ادب تقريباً ټول منظوم ډولونه(لنډۍ، د هوتکو ناري ، بابو لالي، د

کتیا لنډ کی،د نکلونو غزونه اونور)غالبا د ترنم په (ـنه) اویا (ـنا) پای
ه رسیږی .
د پښتو د لیکلی ادب لرغونـــیمنظوم او نیمه منظوم زیات آثار(لکه
و ښانی رساله د اخوند درویـــزهمخزن الا سلام اونور) هم ددغـــه
ولسی ادب د خصو صیت تر اغیزی لاندی راغلی دی . همدا رنګه پهډیرو
رو ستیو نظمونو هم ددغــه خصوصیت اغیزه لیدله کیږی . لکه دبی بی
ینب دا سانده :

ږغ سو چی وروړ تیر له دنیاسونا
قند هار بواړه ژړا سو نا (ترپایه)

تر دغه ځایه د شیخ بستان بړیځدخوږی بدلی په څو هغو کلمو باندی
ها واچو له شوه چی زما پهنظربایدخه پری ویل شوی وای .
په نتیجه کی باید په جرئت سرهوواېو چی ددغی خوږی بدلی ټـــول
ړنی خصو صیات موږ ته د هجری‌لسمی پیړی د پښتو ژبی تر کیبونه،
وی پانګه ، شاعرانه احساسات،دهغو دافادی طرز او نوری خواوی‌را
ه زړه کوی او ددغه شعر دفورم پههینداره کی د لسمی پیړی دپښتو د
عر فورم ګورو .

**ٔمن لیك :**

(۱) د کابل پهچاپ ۱۹۲ ـ مخ کی(ټکاو) لیکل شوی دی .
(۲) د اشرف خان هجری په شعرکی دصفت (آرام ، استو ګن) معنا
رکوی .
(۳) د خوشحال د کلیاتو لومړی‌قلمی نسخه چی غالباً دهغه په ژوند
کل شوی (۲۵۱ مخ)
(٤) د اوسیتی ژبی تاریخی ، ایتیمو لوژیك قاموس دریم ټـــوك
۱۸۷ مخ) مولف ب. ی.ابایف د لنینګراد چاپ (۱۹۷۹) کال .
(٥) په دی باب ماته کوم خـــاص‌معلومات نشتهچی کوم خلك(رایسه)
یی ، خو په ځینو غلزیو قو مونوکی‌اوریدل کیږی . د شینوارو د زاړه
سل خلك اکثره (رایسه) او دنوی‌نسل خلك (رایشه ،رایسه، راشه)
یی .

پوهاند میر حسین شاه

# بحث سه مورخ و تذکره نویس

## در بیان احوال

# شیخ بستان بریخ

قند هار در قرن ده ویازده هجری مطابق شانزده و هفده میلادی ازنظر
اقتصاد و سیاست و تر تیبات دفاعی مقام مهم داشت شهر در وسط راهی
واقع بود که کاروان تجارت هندو ایران و بیرون حدود این کشورها از
آن میگذ شت. از لحاظ نظامی جهت حفظ کابل و خراسان استیلای برآن
حتمی شمرده می شد . از همیـــن جهت در طول این دو قرن این شهر
مهم محل رقابت دو قدرت استیلا گرعصر، صفو یان ایران و گور گا نیان
هند بود وپانزده بار مورد تهاجم قرارگر فت . از نظر اقتصادی شهر و
اطراف آن وضع مرفه داشت آب آن فروان بود وزرعش وافر (۱)

در این روز گار پر آشوب عار فی بنام محمد اکرم، فارغ از فتنه ، در
کنار هلمند درکلبه‌ای زندگی داشت.از او پسری بدنیا آمد که بعدها از
رجال بزرگ علمی عصر شد.دراحوال این رجل بزرگ ادبی و عر فانی سا
مرجع مهم ومغتنم مو جود است .

(۱) تاریخ خان جهانی و مخـــزن افغانی تالیف خواجه نعمت الله بن
خواجه حبیب الله الهروی.

(۲) پته خزانه از محمد هوتك بن داود .

(۳) تاریخ مر صع نوشته افضل خان ختك .

خواجه نعمت اتله مولف مخـزن‌افغانی در عهد اکبر از سلاطین گوز ـ گانی هند (٩٦٢ ـ١٠١٤ ر١٥٥٦ـ ١٦٠٥) عضو دیوان املاك سطنتی (که در آن عهد بنام خالصه یـــادمی شد )بود ، در سلطنت جهانگیر وقایع نویس‌دربارشد ومدت‌یازده‌سال‌این وظیفه را بر عهده داشت .

در سال ١٠١٧ ـ١٦٠٨ او را ازوظایف اداری معاف کردند .گویند که در سال ١٠٠٤ ـ١٥٩٥ نزد خان‌خانان‌داروغه کتابخانه بود. پس از عزل نزد خان جهان لودی رفت‌ودرخدمت او مشغول بکار شد ودرسال ١٠٢١ـ ١٦١٢ دربرا ر(٢) په‌انشایی‌مخزن افغانی پر داخت. (٣)

پته خزانه را محمد بن داودهوتك‌برای شاه حسین هو تکی نوشت و شرح این تالیف را از زبان خود اومی شنویم :«پس مرابدر بار خویش طلبید ، و تشویق کرد والطاف‌فرمودکه این‌اراده خودراتکمیل کنم‌واحوال شعرای پښتو را فرا هم آورم، چون‌پاد شاه ماو محبوب القلوب ښالـــم خیل ها، شاه حسین خلد الله ملکه‌وسلطنة، خود ش نیز دارای سخنان خوبی بوده‌وبه‌شعر پښتوشوقی داردپس منهم خواستم که علی العجا له این کتاب‌نگارش یابدواحوال شعرای‌پښتو فرا هم‌گردد اشکاراباد که‌من‌از مدت سی سال بدینطرف احوال‌بسی‌از شعرای پښتون را جمع آوری کرده ام ، واو قاتی که در نواحـــی‌پښتو نخواه گشت و گذار داشتم از مردم احوال بسیار دلچسپ شعراءرا شنیده ام، وحالا همهٔ آن رابه خواهش پاد شاه ظل الله خود می گمارم ، نام این کتاب پته خزانـــه (خزانه پنهان) است زیرا که در ینجا همان احوالی را گرد آورده ام ، که پنهان بوده و ظاهر نگر دیده‌بود،افرید گار تعالی تمام مسلمانان را بیخشا یادو سایه پاد شاه ماراهمواره‌ودایم دارد، چون به‌نگارش این کتاب آغاز کردم ، روز جمعه بود ،شانزده‌جمادی الثانی سنه (١١٤١) هجری (٤)

واما تاریخ مرصع از امهات کتب‌تواریخ وادب پښتو است که در این او اخر به سعی دوست محمد کامل،از پشاور انتشار یافت .

ارزش این سه کتاب درترجمه حال عارف بزرگ بستان بریځ‌دراین است ، که یکی‌متمم دیگری است ،بطو ر یکه از مطالعه و مقایسه آن می توان اجمالی از احوال آن شاعروعارف بزرگ را بدست داد ، باین

تو ضیح که پته خزانه‌از اوایل زندگی ومختصری از احوال پدر وی بحث میکند و مخزن ازاواخر حیات وهنگام‌اقامت درهندوستان .ماخذپته خزانه روایت پدرش ، واز پدر ، قول‌قدمااست . داود خان پدر محمد هوتك در سال ۱۰۲۹ هجری (۵) یعنی ۲۷سال بعد از وفات بستان بریخ بدنیا آمده بود و بنا بر آن قد مایی که ازایشان روایت شده است .می تواند قند هاری های معمری باشند که‌شیخ‌بستان بریخ‌را هنگام مراجعت ازهند به‌قندهار در ۹۹۸ه ق (٦) دیـــده‌وذکر حال او وپدر ش را از خودش شنیده بودند .نعمت‌الله خودبا شیخ‌معاشر بوده‌و بیان‌وی‌در احوالش‌چشم دید خود او است .

محمد اکرم پدر شیخ بستان بریخ‌بقول پته خزانه در شوراوك (۷)خانه داشت و بنابر آن شیخ عارف مابایددر آن جابدنیا آمده باشد .تحصیلات مقد ماتی را نزد پدر انجام داد .

«نقل کنند که شیخ بستان از حضور پدر خویش استفاضه‌نمود(۸) این استفاضه در چه حدی‌بود وآیاجز پدر نزد اشخاص دیگری نیز به تعلیم پر داخت ؟درست معلوم نیست‌قسمتی از مواد تعلیمات عالی در آن وقت عبارت بود از صرف ونحوعربی‌حدیث و تفسیر قرآن، فقه واصول، منطق ،حکمت‌مشایـــی و اشراقی ،طبیعیات و ریاضیات (۹). از شهرتی که بستان بریخ در علوم‌ومعارف اسلامی کسب کرد، وتالیفی که محمد هوتك بنام بستان الاولیاءاز او نقل میکند، و اشعار محکمیکه در پښتو از وی بر جای مانده است.می توان حدس زد که این دوره یی تحصیل را نزد پدر یا مجامع علمی‌قند هار یا هردو دیده باشد .

پدر شیخ بروایت محمدهوتك ازشوراوك به کنار هلمند آمد ودرآنجا درسپنجی سکو نت گزید .علت‌این‌مهاجرت شاید ضیقی وضع معیشت بوده باشد .

شوراوك اقلیم خشك داردهوای‌آن‌در زمستان معتدل ودر تابســتان بسیار گرم است .اراضی آن همواربوده و خالی از درخت میباشد. آب آن اندك است وآب آشا میدنی را ازچا هایی به عمق۶۰ تا ٦٨ متربدست میارند.از محصولات زراعتی جزگندم‌وجو چیزی ندارد. اهالی به زراعت‌و مالداری میپر دازند.(۱۰)

محل اقامت پدر شیخ، بعد ازآنکه‌از شوراوك ، به کنار هلمند آمد و مقیم شد کجا بود؟ ماخذ مانمیتواندر پیدا کردن آن یاری کند. امـــا احتمال میرود شهر بست یا اطراف‌آن بوده باشد زیرا بست باویرانی های متواتر باثر هجوم های جنگ‌آوران هنوز هم بحیث‌قصبه مسکون باقی مانده بود. چنانچه در ایـــام‌کودکی یا اوایل شباب شیخ بستان همایون پسر بابر ، در ۹۵۱ ر۱۵۴٤بر آن حملـه کرد و آنـرا تسخیر نمود (۱۱) .

شیخ‌بستان در جوانی با حتمال پس ازاتمام‌تحصیل به‌هندرفت(۱۲) ودر سامانه مقیم شد. محمد هوتك گوید : ودر آنجا شهر بشهـــــر میگشت و آثاروقدرت راتماشا می‌نمود. (۱۳) آیا مطالعه و مشاهده او منحصر با ثار قدرت بود یا غیر ازآن از مرا کز مهم علمی، کتابخانه‌ها، وخانقا های هند نیز استفاده میکرد.غالباً شخصی مانند بستان بریڅ با آنهمه اندو خته علمی ، نمیتوا ند به‌مشاهده آثار قدرت اکتفاء کند. مخصوصا آنکه یکی از دوستا نش نعمت اتلله هروی وظیفه مهم اداری داشت و همشهری دیگر وی‌ملاقاسم‌قند هاری در مدرسه ملتان‌مدرس بودة (١٤) .

شیخ به هند در کسوت تجارت وارد شد، ا ما تجارت را وسیلـــه امر امعاش کومك باضعفا ساخته ومعنا مشغول انجام وظایف دینی و تزکیه نفس ومطالعه آفاق‌وانفس‌بود.اینک‌اصل‌عبارت مخزن‌افغانی .«... وخودرا درلباس‌تجارت مخفی‌میداشت‌و آن تدارك اندك دست مایه بود،که بیع شر عی میکرد و سود وجه جلال‌زادر وجه ضروریات موافق شرعی قسمت مینمودمحتاج وسایل‌ودرمانده‌را دستگیری میکردو صاحب درد و شوق بود. و چشمان شریفش‌هرگزاز اشك خشك نبود وچندان درد داشت که گویا الم و محنت تمام‌عالم‌رابردل او تسلیم کرده اند . وهر ساعت آه های دردناك از جگر خون‌آلود بر آوردی . با وجود اینهمه‌سوز ودرد پانزده سیپاره‌قرآن وظیفه‌یومیه‌ایشان بود. ودردو روز ختم قرآن کـردی و بعضی از اشعار پښتو رابصورت حزین ودرناك که سنگ را بگریه آوردی میخواند واشك از چشمش میریخت و آخر شب که یك پهر میماند و ضو سا خته بحـــق‌مشغول می گشت وهرپنج وقت‌نماز

وضو تازه می ساخت »(١٥)

شیخ بستان پس از مدت نسبتادراز اقا مت در سا مانه وباحتمال‌در جا های دیگر هندو ستان دوباره به‌قندهار آمد وآن از نوشته پته خزانه باین عبارت معلوم می شود. «وقتیکه‌بوطن آمدبسال ٩٩٨ه دربیان اولیاء الله کتاب بستان الاولیاء رانوشت»(١٦)

این ا قا مت در قند هار بایدطولانی نباشد. زیرا در مخزن افغانی ماباز او را در هند میابیم .نعمت‌الله گوید: «وکمترین محرر متصدی این تاریخ مدت یکنیم سال در آخر درسفردریاکه به‌بندر گوه‌رفته‌بود(١٧) در خدمت ایشان شب وروز همراه‌بود . (١٨)

و چون از این سفر باز گشت وبه‌احمد آباد رسید عارضه اسهال کبد باوروی دادو به همین مـرض چشم‌ازجهان پو شید و به عبارت‌نعمت‌ـ الله ،«روز جمعه هفتم ماه‌ربیع‌الثانی‌سنه ١٠٠٢ اثنی والف وقت نماز خندان و فر حناك بمحبوب اصلی واصل شدند».

**آثار :**

از عبارت‌مخزن افغانی‌که میگوید:«بعضی اشعار پښتو را...» میخواند می توان استنباط کرد که این اشعاریا غالب آنها از خود وی بوده. پته خزانه تصریح دارد باینکه درتالیف‌دیگرش«بستان‌الاولیاء» اشعاردیگران واشعار خود را نقـل کـرده بود .

اما از آن اشعار جز آنچه در پته‌خزانه آمده جزی باقی نیست .

کتاب دیگراو همان بستان الاولیااست که نام آن درپته خزانه‌محفوظ مانده است . محمد هوتك گوید :«که‌پدرش رحمة الله علیه این کتاب را در ښوراوك بخانه حسن خان بړیځ‌دیده بود» .

تالیف بستان الا ولیاء گویا بس‌از مراجعت شیخ در قند هار صورت گرفت ودر خانوادهٔ او ونزد یکانش‌تا زمان حیات‌پدر محمد هوتك‌موجود بود.».(١٩) واینك اشعاری از آثارآن مر دبزرگ که درپته خزانه ثبت است :

او ښکی می څاخی پر گریوان‌یووار نظر که پر ما
راسه گذر که پرما

د مینی اور دی زما زړګی وریت په‌انگار کینا
ښی تارو نار کینا

خود به ویلیږم چې می زره پر تامفتون کینا
ځان می زبون کینـــا
اوښکې می خاخې پر گریوان یوارنظر که پر ما
راسه گذر که پر ما
وکه نظر زما پر حال چې پروت‌رنځور یمه تل
په ویر ناسور یمه‌تل
له زړه‌می خاخی وینې سورپه‌وینوخیل یمه تل
په اور جلبل یمه تل
او ښکې می خا خې پر گریوان بووار نظر که پر ما
راسه گذر که‌پرما
له درده سوزه تل ناری او غلبلې‌و همــــــه
کرږې سوری و همه
یو آن می چیری نه آرام نـــــه‌ټیکاو نه ومینم
نه راحت کړ نه وینم
او ښکې می خاخې پر گریوان یووار نظر که پر ما
راسه گذر که‌پرما
دخوږو زړو له‌حال نه‌یې ای‌باداره‌آگـــــاه
یې‌دبې وزلو همراه
د خپل عزت په‌روی‌بستان ته‌کړه‌په مهر ښندل
کړې له گناهه‌گوابښل
او ښکې می خاخې پر گریوان یووار نظر که پر ما
راسه گذر که پر ما(۲۰)

**حواشی :**

(۱) ریاض الاسلام ،در Indo Persian Relations بنیا د فر هنگ لاهور، ۱۹۷۰ ص۱٤

(۲) Berar در جنوب ناگپوردر ایالت مدیه پردیش centralprovince امروزی .

(۳) سکسینه، دکتر، پر شاد دتاریخ شاه جهان ، Indian council of Historical Research دهلی، ۱۹۷۸ ص ۱۲

(٤) پټه خزانه با حوایشی وتعلیق‌پوهاند حبیبی، کابل ، ۱۳۵٤ ،ص۳

(۵) پته خزانه ص ۹۲
(٦) ایضا پته خزانه ص ٢٦ .
(۷) ولسوالی مربوط ولایت قندهار
(۸) پته خزانه ص ٢٦
(۹) صدیق، دکتر عیسی ، تاریخ فرهنگ ایران ، تهران ،۱۳٤۲ص ٢٣٤
(۱۰) د افغانستان جغرافیایی قاموس دآریانا دایرة المعارف د ټولنی د «خپرونو څخه» کابل ــ۱۳٤۷ص ۸۷ .
(۱۱) ریاض الاسلام ص ٤٠ .
(۱۲) قصبه ای در جنوب شرق لاهور در کنار ستلج رجوع کنید به دکتر تارا جند در Short history of India مکمیلن ، ۱۹۵۳ ،ص ۱٤٠ نقشه .
(۱۳) پته خزانه ص ٢٦
(۱٤) اکبر آبادی، مفتی انتظام الله تاریخ ملت ،ندوة المصنفین، دهلی ۱۹٦۷ ، ص ۸۳
(۱۵) نعمت الله، تاریخ خان جهانی و مخزن افغانی ،به سعی سید محمد امام الدین، ایشیا تیک سو سایتی پاکستان ، ۱۹٦۲ ص ۷٤٤ .
(۱۷) گوای امروزی در جنوب بمبئی که در آنوقت مرکز تجارت پرتگالیان بود.
(۱۸) مخزن افغانی ص ۷٤٤ .
(۱۹) پته خزانه ص ٢٦ .
(۲۰) پته خزانه ص ۲۹ نسخه خطی نسخه خطی .

م- ابراهیم عطائی

# ښوراوک د کلتوری څیړنو د یوی مهمی منبع په توگه

د کلتوری څیړنو په تحقیقی کارکی ځینی سیمی د هغو کانو نـــو په شان وی چی ډیر ارز ښتمن فلزات یی په گیډه کی ساتلی وی .

ددغسی سیمو د خلکو د ټولنیزژوند کره وره د علمی پلټنو له پاره خورا ډیر داسی مواد وړاندی کولای شی چی د اوسنیو ټولنو د خلکو منا سبات پر و پیژندل سی .

زموږ د هیواد په هغو سیمو کی چی د پور تنی او صافو درلودونکی وی یو هم ښوراوک دی . په دی سیمه کی له هر پلوه دا مساعدت په پراخه ډول موجود دی چی له بیل بیل پلوه دی ر سرچ پکښی وسی .

په دی سیمه کی د پښتو فولکلوری ادبیاتو یوه خزانه پر ته ده چـــی راټو لول یی د ولسی ادب په بډایتوب کی زښته ډیره اغیزه لری، همدارنگه زموږ دا دبیاتو د تاریخ یو شمیـــرتخلیقی کارونه په دغه سیمه کی سر ته رسیدلی دی چی ددغو آثارو پلټنه باید و سی .

دغی سیمی ته منسوب یو شمیرمشران چی دتاریخ په مهمو ختونو کی یی په هندو ستان کی حکمرانی کړیدی د افغا نستان او هندو ستان دتاریخ یو گڼ فصل جـــوړ وی دی سیمی ته نور هم اهمیت ورکړی .

اوسنی قبیلوی ټولنه یی د داسی کلتوری میرا ثونو ساتو نکی ده چی دانسان پیژندنی ډیرو مغلقو او پیچلوپو ښتو نو ته جوابو نه او مثالو نه برابرولی سی .

ددی کارونو هره برخه په‌تفصیل‌سره ځانته لیکنه او څیړ نه غواړی خو زه دلته دا کار په داسی اختصارکوم چی د یوی لنډی مقالی له‌حوصلی څخه دباندی ونه وزی .

ښوراوك د جنوب لویدیځ افغانستان د هغه لوی ریگستان په‌ختیځه څنډه کی واقع دی چی د پخوانی‌اراکوز یا سیمــــه یــی د لر غو نــی جدرو سیا سره تړ له .

«ښوراوك د (٦٤او ٦٦ درجی ١٩دقیقی ١٤ او ٢٦ ثانیی په ختیزطول البد ٢٩ او ٣٠ درجی ٢٩ او ٣٢دقیقی١١ او ٣٦ ثانیی عرض البلد په منځ کی پروت دی (١) »

«ددی سیمی ختیځ او جنوب تــه‌د کوږك غر دی چی د بلو څو ســره همجواره دی ، لو یدیځ ته یــــی‌گر مسیل او سیستان پــروت دی (٢) ».

په رسمی تشکیل کــی دکندهاردولایت مر بوط یوه ولسوالی ده‌چی د. ریگستان په نامه یوه علاقداری‌هم‌لری .

اوسیدونکی یی ټول بریخاڼ دی‌چی لږ بلوڅ هم استو گنه ورسره لری او «شمیری یی اته‌زرو کسو تــــه‌رسیږی (٣)».

د ښوراوك سیمه ټوله‌ریگی ده‌خومرکز ته ورخرمه څوغټی غونډی لری او داسی معلو میږی لکه تازه چی‌دریگو څخه را وتلی وی او دا دهغو غرو څو کی وی چی لاندی برخه به‌یی تر ریگو لاندی وی .

«د پښبین لوړه له ښوراوك څخه‌وچاغی ته‌ور تیریږی اوهلته د هامون له لوړی سره گډیږی. دا لوړه چی‌دخپل منبع څخه چی د بر ښور غرنو- میږی بیا تر پایه ٦٥٠ میله اوږدوالی‌لری . ددی لوړی اوبه دایمی نه‌وی خو موسمی او به چی راوړی د هغوڅخه په کر نه کی کار اخیستل‌کیږی (٤) ».

خلك یی کر نه او مالداری کوی‌خود داوبو لږ والــی اوخړ ځا یونو کمښت په دغو دواړو اقتصــــادی‌فعالیتو نو کی محد ودیت راوستلی دی .

* * *

بړیخان خپل‌ا صلی‌ځای ښوراوک بولی نور نو دا قبیله لو یدیځ خواته د هلمند له کلا بست څخه دگرمسیل تر لنډی او پلالکی پوری او ختیځ خواته د سلیمان د غرو تر لړ یـو پوری پراته دی او یو زیات شمیر یی په هندو ستان کی اوسی .

«په نسبی رابطه کـی بړیخ سړ بنیان دی چی د ښر خبون په اولاده کی د شیرانی سره‌ورو ری لری، اونور مشهور ورو نه‌بی اورمړ اوترین دی . خر ښبون دبړیخ تره بلـــــل کیږی او (کند، زمند اوکاسی) یی تر برو نه دی (٥)».

بړیخ په قبیلوی لړ یـو کـی دانښاخو نه لری .

## بړیخ

**اوتغ** **حسین**

داودزی ، چو پان زی ،بدل زی،شیخ ثا بت شکور زی، یسوک زی مردانـــه ، بـارك زی ،بسیا زی ،زکو زی ، مندو زی (٦)

* * *

دا خو د بړیخ د قبیلی عمو مـــی ښاخو نه وه خو په ښوراوك کـــی بړیخان وایی چی موږ دری وروڼه یو(بـدل زی، زا کوزی او مندوزی) خو شیر انی چی اوس د ځلورم‌وروړبه تو گه ددوی سره اوسی په اصل کی د دوی تره دی . دوی وایی چی‌دلته په ښوراوك کی‌د مځکو دلوړی ویش پر وخت جگړه وسوه اوبیا پریکړه چی وسوه نو شیرا نیو ته‌هم مځکه ور کول سوه او په دی ډول په مځکه د شریك ورور حیثیت یی پیدا کړ .

د ښوراوك خلك تو له په پښتوخبری کوی او د خلکو په محاوره کی یی د متلو نو ډیـر استعمال داسی‌څرگند یږی چی د فو لکلوری ادب خزانه یی ډیره بډایه ده .

د پښتو ډیر مشهور فو لکلوری‌داستان (فتح خان بړیخ) چی دیوی ولسی حماسی حیثیت لری . دبړیخ‌د قبیلی فولکلوری دریځ یی ډیـــر پیاوړی کړیدی .

په دغه داستان کی یو ځای وایی«... کله چی فتح خان بړیخ د شپیتو بړیخو سره د کلا بست لهښاره ووت‌او د هند وستان پر خوا روان سونو ښوراوك ته راغی. د فتح خان بړیځپلار خبر سو نو د ښوراوك سپین‌ږیرو ته یی خبر ور کړ چی دا یاغی‌ډله را وګر زوی خو هغو نه یوازی وی راو نه ګر زول بلکی دوی یی لاښه نور هم تشبحیع کړل نو داووچی ی ناری په نکل کی ځای‌ونیوی‌ء :

اور دی وسی د بړیخو په سپین‌ږیرو

مرووریی پخلا نه کړل لا دلا سه‌ورښیی یاغی ملکو نه (۷) »

د پښتو ادب په تاریخ کی ددغی‌سیمی شخه د شیخ بستان بړیځ‌نوم و د هغه اثر (بستان الاولیاء)شهرت‌لری چی‌یو هانداستاد حبیبی داسی‌ړی ورخ او اثریی یو تاریخ بللی دی .

دشیخ بستان او د هغه داثر پــه‌باب په پټه خزانه کی داسی یادونه کیږی .

«ذکر د کاشف اسرار عر فان‌شیخ‌بستان بړیخ قدس الله سره العزیز وما پلار علیه الرحمه له قدما څخه‌روایت کا چی شیخ محمد بستان په نوم بړیخ و په ښوراوك یی کور و.دده پلار محمد اکرم رحمة الله علیه هم د خدای ولی و او دښوروواکـــه‌راغی د هلمند پر غاړه په یوه کوډله کی اوسیدیء اود خالق په عبادت‌بهاړ وو .... تر پایه (۸) »

محمد بن داود هو تك د خپل پلارڅخه روایت کوی چی شیخ بستان د (بستان الاولیاء) په نامه یو کتــاب‌دپټی خزانی‌د لیکوال پلارپه ښوراوك کی دحسن خان بړیخ په کور کـــی‌لیدلی و .

د شیخ بستان او د هغه داثر په‌باب یو هاند استاد حبیبی دایاونه هم کوی چی (هغه مورخ او شاعر وو او نعمت الله هروی چی دشیخ‌بستان معاصر وو دده شرح حال یی په‌مخزن‌کی لیکلی دی . د نعمت الله دغه‌بیان چی دده مشاهدات دی د شیخ بستان‌عرفانی ادبی مقام راښیی .(۹)» .

دبړیخو یو زیات شمیر پـــه‌هندو ستان کی استو ګنه لری اودا هغه پښتنا نه‌دی چی‌د افغانی فاتحینوسره هندته ورغلی‌دی اواوس یی‌پاته کسان ځانونه‌هغو کسانو ته منسوب‌ګڼی چی د هندو ستان په تاریخ کی نوم او نښان لری .

یو له دغو کور نیو څخه د حافظ رحمت خان بړیځ کورنی ده چې اصلا «دکند هار د ښوراوك وو چې په رو هیلکنډ کی حکمران وو» ( ۱۰ )
حافظ رحمت خان په هند کی د ابدالی احمد شاه دفتو حاتو ملګری و اودده زامن او وریرونه درو هیلکنډ ډیر مشهور حکمرانان وو پخپلـــه حافظ رحمت خان د افغانی فر هنګ په بډا یتوب کی ډیره لو یه برخه اخیستی ده او ځینی داسی تاریخی متون دده په پا ملرنه دور کیدو او هیری څخه ژغورل سویدی چې هغه نن د لو یو علمی اسنا دو په جمله کی ډیر هسك ځای لری .
تواریخ حافظ رحمت خان چې پیر معظم شاه ته منسوب دی اصلی متن یی د حافظ رحمت خان په سپارښت لیکل سویدی او دا یو داسی غنیمت اثر دی چې د پښتنی اقوامو اوقبایلو دلیږ دید نو او نورو اجتماعی او سیا سی مناسباتو ډیری خبری پکی پر تی دی .
له دغی کورنی څخه چې ښوراوك ته منسوب ده بل ډیر لوی سړی جنرال بخت خــان و چــې د هندوستان د خلکو په هغه ستر قیام کی یی د آزادی ساتو نکو ر هبری وکړه چې په ۱۸۵۷ کی دانګر یزانو پر ضد راوچت سو .
د ۱۸۵۷ کال په دسمبر کـــــی انګریزانو د ډهلی پر ښار یر غل وکړ. کور ګانی پاچا بهادر شاه ظفر په ډار سره انګریزانو ته ځــــــان تسلیماوه خو جنرال بخت خان هغه ته ډاډ ور کاوه چې د انګر یزانو مخه به ونیسی جنرال بخت خان دانګریزی قواو په وړاندی دو مره خنډ و نـه ایجاد کړه چې « د کشمیری دروازی او لال کلاتر منځ لنډه فاصله انګریزانو په پنځه ورځی وو هله. (۱۱) »
دا جنرال باچا د تسلیمه څخـــه راونه ګرزو لای سوای نو کله چې باچا تسلیم سو جنرال بخت خان له ډهلی څخه لکنهو ته ولاړ او له هغه ځایه د هند وستان غرونو ته وخوت او پسی ورك سو چې بیا یی چاپته پیدا نه کړای سوای .
دښوراوك خلك وایی چې «کله د ډیورند کر ښه تاکل کیده نوښوراوك د افغا نستان څخه د باند ی سوی وخو سمندر خان بړیځ د خپلو سپرو سره پر کوټه حمله وکړه او دومره لوی خطرونه یی انګریز انو ته متوجه

کړل چې هغه په دې راضي سول چې ښوراوك د ډيو رند د کر ښې هغې خواته کړې چې افغا نستان دی او له همدې کبله نن د افغا نستان په نقشه کې ښوراوك داسې راغلی دی چې دډيورند کرښه يې شاته وهلې ده(۱۲)

په ښوراوك کې د کلتوري رسم له پاره ډيرپه زړه پورې موضوعات سته چې يو د هغو څخه د هغه ځای دخلکو صحرا یي نجوم دی .

دښوراوك خلك کښت وکرو نده، سفرونه او نور ډير کارونه ددغه پو هنې په ذريعه سر ته رسوي.دوی لمر، سپوږ مۍ او ستورې تر يـــو ځاکلي حساب لاندې پيژنی .

دورځې حساب د لمر د سيوري په ذريعه معلو موي ، د شپې له خوا د سپوږمۍ درا ختلو پروختو نو حساب کوي . په عمده ډول ستوري په دغو نو مونو يادوي:

سهيل، لړم، چچه، ډمان، لوديان،دبوډۍ ټال ، پيرونې. دغه ستوري د سپوږمۍ له حساب سره معادل کيږي او دهرې مياشتې دنا مه سره ددغو ستورو مو قعيتو نه تر حساب لاندې راځي .

مثلا د لو ديان ستوري چې دسهارپه سپيدو کې ښکاره سي نو دادمنی لومړی ورځ ده . د سهيل ستوري چې د سپيدو سره راو خيږي داد منی څلو يښتمه ورځ ده . پيروني چې دماښام له اذان سره راوخيږي نوداد ژمې پيل دی .

د دوبي اوژمې حساب داسې کوي:

دژمي لو مړی برخه ۲۵ ورځې ده چې کو چنی ځيله يې هم بولی دوهمه برخه يې ٤۸ ورځې ده چې لو ځيله هم ورته وايي دريمه برخه يې هم ۲۵ ورځې ده چې د ژمې ورستي ورځې ورته وايي .

د دوبي لو مړی برخه ۲۵ ورځې ده

دو همه برخه يې ٤۰ ورځې ده چې سره ځيله ورته وايي .

ورو ستې برخه يې هم ۲۵ ورځې ده چې سور تل ور ته وايي .

* * *

بړيځان قوي خلك دی او د کارڅخه د فراغت په وخت کې بيل بيل سپور ټو نه لري چې عمده سپورټ يې غيږ ده .

دميلو په ورځو او ودونو کې اتڼونه کوي او بړيځي اتڼ ځانته نوم لري دوی په اتڼ کې تو پکونو ته حرکت ورکوي او کله چې اتڼ ښه گرم سي

نو په تو پکو تکان هم کوی .

د سپو ږمی په ۱٤ شپه د سپوږمی رڼاته یی ځوانی ښځی او پیغلانی اتڼو نه کوی او سندری وایی .

د زوی زیږ ید نه نیکمرغی بولی او په هغه کور کی چی زوی و زیږی خیراتو نه کوی او د هلك د نـــوم ایښو و لو پر وخت سندری وایی اتڼو نه کوی .

د مړی دښخیدلو مراسم یی دنورو پښتنی سیمو په شان دی خیراتو نه زیات کوی او فاتحه دری ورځی اخلی. دښوراوك بډ ځان د کرنی مځکه د (دود) په نامه هغه پـــر خاصو ټاپودقبیلی په د ننه کی ویشی، ددود ځخه د دوی مراد دټوپك دخولی دوددی او مطلب دادی چی هغه کسان د مځکی مالك کیدای سی چی په توپك ټك کولای سی . په دی ډول د ۱۲ کلن هلك ځخه پور ته هر ســـړی کولای سی چی په دغه ویش کی برخه ولری

په دی ډول د ښوراك لنډه پیژندنه پای ته رسوم خودهغو کسانو له پاره چی کلتوری رسرچ کوی دا سیمه نه تما میدونکی مواد لری .

**ما خذ ونه :**


(۱) پښتو آریانا دایرة المعارف ٦ جلد ٤۲۳ مخ

(۲) پو هاند استاد حبیبی د پټی خزانی حواشی ۲۲۱ مخ په ۱۳٥٤ کال د اطلا عاتو او کلتور د وزارت چاپ.

(۳) محمد ولی زلمی کند هار د کابل چاپ ۲۲٥ مخ

(٤) د ولس مجلی مجمو عه ۱۹٦۳ کال د اکتو بر نوامبر گڼه د کویټی چاپ ۹٥ مخ.

(٥) پور تنی اثر ۳۱۷ مخ

(٦) ظفر کاکا خیل پښتانه دتاریخ په رڼا کی د پیښور چاپ ۱۲۷٦ مخ.

(۷) د کند هار پیژندنه د عطائی لیکنه په ۱۳٤۷ کال کی د کند هار چاپ ۲٤ مخ .

(۸ محمد) بن داود پټــه خزانــه په ۱۳٥٤ کال کی د اطلا عاتو او کلتور د وزارت چاپ د متن ۲۸ مخ.

(۹) پو هاند استاد حبیبی نومورکی مور خین په ۱۳۵۹ کال کی د کابل پوهنتون د فلا لوژی د پو هنځی له خوا د کابل چاپ ۱۲ مخ.

(۱۰) عبدالرحیم ځدراڼ رو هیله پښتنانه په ۱۳۵۷ کال کی د پښتو ټولنې له خوا د کابل چاپ ۳۲ مخ.

(۱۱) پور تنی اثر ۷۰ مخ .

(۱۲) په ښوراوك کی د نظر محمدخان بریځ خبره ده چی ماته یی په کال ۱۳٤٦ کال کی هغه وخت وکړه چی زه ښوراوك ته ورغلی وم .

(عطائی)



دپو هاند دو کتور محاور احمدزیار د فرانسوی مقالی

# پښتو لنډیز

شیخ بو ستان بړیځ (د ۱۰۰۲ هـ ق) چی محمد هوتك یی دپټی خزانی
په لو مړی خزانه کی د لسم شاعرپه‌توګه را پیژنی ، پـه لسمی لیږ دی
شیری پوری اړه لری دا چی شیـخ بوستان تر هوتك دمخه‌د خپل عـم
هالی او دوست (نعمت الله هروی)له خوا په مخزن افغانی کی هم یاد
شو ی‌دی، له یوی خوا ددغه ادبی اورو حا نی شخصیت او له بلی خواد
ټی خزانی د رښتینوالی د چوتنیا له پاره یو بل لاسوند دی ( په دغـه
اب دی دزیاتی څر ګندونی له پاره‌د۱۳۵۶کال د پلو شی مجلی په ګڼـه
و د ۱۳۵۷ کال د پښتو مجلی پـه‌دریمه ګڼه کی د لیکونکی لیکنو ته
خه و شی .)

زما په دغه‌اوسنی لیکنه کی لومړی‌دمحمد هوتك له خوا د شیخ بوستان
ژوند لیك او بیایی د بدلی ژباړه له‌یوی لنډی ژبنی سپړنی سره وړاندی
یږی .

د شیخ بو ستان بړیځ شعر یوپښتو وګړنـی ( فولکلور یك )ډول
بدله) ده .لکه‌څنګه چی دوکتورروان‌فرهادی لیکلی دی ، دغه شعری ډول
وه لر غو نی آره لری او جرړی یی‌زړو آریایی ژبوته رسیږی .
تاریخی ګړدودپو هنی(دیالکتولوژی)له مخی د شیخ بو ستان بړیځ د
بدلی» ژبـه د یـوی خلور سوه‌کلنی کندهاری پښتو ګړدود ښکار
ـویی کوی او کولای شو ، هغه دروښانی ادبی پیر له پښتو، لکه د
یزید روښان (۹۳۱ـ ۹۸۰ هـ) د خیر البیان د ارزانی (د ۱۰۱۰ هـ
ال) شعری دیوان او داخون‌درویزه(۹۴۰ ـ۱۰۲۸ هـ) د مخزن الاسلام
هغې سره پر تله شی . ب

په دی توګه د شیخ بو ستان بړیڅ دبدلی ژبه دو مره لر غو نوالی نه‌لری او د ښوراوك له اوسنی ګړ دودسره‌یی دو مره تو پیر نه لیدل کیږی .

په ټوله نه ګړ یزه بدله کی له‌دوو پاموړو ویيو نو ( لغتو ) سره مخامخیږو :

(ګوانښل) چی استاد پو هانــدحبیبی په دری کی (دور سا ختن) او حبیب الله رفیع (منع کردن ازبدی)ژباړلی دی ، نن سبایی په لویدیزه (کندهاری) پښتو کی څرك نه لیدل‌کیږی ،(۱) بلکی یوازی په ختیزو (ننګرهاری) ګړدودو کــی کــارول‌کیږی هغه هم د (تهدیدول) او(خبر داری یااخطا ر ورکول) په‌مانا (ددغه‌ویی په باب د څیړ ندوی دوست‌هغه څیړنه هم د پا ملرنی وړ ده چی په‌همدی څېړونه کی وړاندی کیږی ).

دویم پاموړویی(ټیکاونه) د(آرامی)او قرار په مانا دی چی څه ناڅه لر غونی (ارخاییك) بریښی .

ددغه ویی بل ورته انډول (ټیك)(۲) په لوید یزه پښتو کی لاتر اوسه په پور تنی مانا کارول کیږی .

د ګړ پو هی (مور فو لوژی) او غونډ له پو هی (نحوی) له پلوه ددغی بدلی ژبه د ښوراوك‌له اوسنی ګړدودسره پوره سمون لری .

(ـنا) په کینا (کرد) کی هسی‌دیوه ترنمی توك euphony ، په توګه کارول شو ی چی په وګړ نیو شعری‌دولو نو کی زیاتره د (ـنه) په بڼه لیدل کیږی .

دزینب هو تکی په ویرنه کی هم‌د(کی) پر ځای (کینا) راغلی دی .

---

(۱) د کندهار پــه اوسنی پښتوکی وایی : هغه دوه تنه چی جنګ سره کوی ، سره ویی ګوانښه !

یعنی په منځ کی‌یی بو ګاښی و که‌او له جنګه یی سره منع که (حبیبی)

(۲) ټیك په کندهاری پښتودری‌معنا وی لری اول احمد داسی درد نیولی‌ء دیء چی هیڅ ټیك یی نــه‌کیږی یعنی آرام نلری .

دو هم : یو خاص د ښځو پسول‌دیء چی پر ټیك یی ږدی او ټك یی هم بو لی دریم‌د سر هغه برخه چی‌شقیقه یی بولی (ح)

# شناخت نامهٔ شیخ بستان بریخ (رح)

## نو یسنده ، شاعر و عارف

سر زمین کهنسال وپهناور روه‌تاریخی در دره‌های زیبا، وکهساران پرپیچ و خم ، وادیهای سر سبزوشاداب و همچنون ریگستان های گرم و سو زان خود طی قرون متمادی چهره های تابناك علمو ادب و عرفان رابه جهان دانش و فر هنگ تقدیم نموده است ، که تاریخ فر هنگی کشور باستانی ما به کار نامه های‌شان می بالد. واندیشه‌ها وپرداخته های علمی ، ادبی و عرفانی آنـان‌درغنای فرهنگ دیرینهٔ ما مقام بس عالی و در خور ستایش دارد.

اندیشه‌های‌علمی، ادبی وعرفانی‌فرزندان دانشوراین خطهٔ مردزای‌گیتی‌نه تنها در تاریخ فر هنگی این سرزمین‌قابل اهمیت ویاد آور یست ، بلکه پژوهش گری های علمی وادبی‌شان‌در عملیهٔ گستر ش دانش و فرهنگ درمنطقه نیز مایهٔ مباهات و افتخارفرزندان باشها مت و میهنپر ست آن می بشد .

عده‌یی زیادی از دا نشوران‌واهل‌ادب وعلم این‌مر زباستانی شخصیت چند بعدی ای دارند. بعضی ها قلم‌را باشمشیر یکجا به‌کار می‌بستند. وازین دو طریق در راه حفظ سنـن‌فر هنگی، ملی‌و تاریخی‌ملت قهرمان وسر زمین پر افتخار خویش بـــه‌مبارزه وپیکار بر می خاستد. بعضی ها در کنج خانقا هی می نشستند جهت‌کسب رضای کامل خداوندی زهدو تقوی و پر هیز گاری پیشه میکردندودر صفایی باطن می کوشید ند.در

پهلوی آن به نبشتن آثار وسرودن اشعار نغزود لپذیر عارفانه وعاشقانه دست می یازیدند .

از جمله دانشمندانیکه ما به شخصیت چند بعدی ایشان قایلیم یکی آنهم شیخ بستان بریخ است، که به شوا هد ا سناد و مدارك دست داشته ، عارف دانشمند، مولف و شاعر توانای زبان پښتو بود.

درروز گارانیکه شیخ به سر میبرد درقسمتی ازنواحی «روه» باستانی قیام ملی روښا نیان علیه مستبدین و ستمگران در صحنهٔ عمل قرار داشت وپیکار عادلانه مبارزین افغان، کاخ بیداد گران امپراتوری کور گانیان هند را به لرزه درآورده بود.

این گروه مبارز ورزمجو نه تنها مردان شمشیر وجنگ وستیز بودند بلکه اندو خته های وسیع دانش همان عصر را نیز با خود داشتند. واز عرفان وتصوف نیز بهره ور بودند. آنها پیروطریق عر فانی وحدت الوجود بودند. ودر راه تلقین این شیوه معرفت الهی به تالیف وتدوین کتب ودواوین اشعار همت گما شتند، وبسی از کتب ودیوانهای عر فانی ودینی زبان پښتو محصول همان عصر است .

رقیب رو ښان اخوند در ویزه ننگر هاری وپیروانش همچون رقبای شان درین فعالیت های فر هنگی پسمان نبودند ، پر داخته ها و نبشته های این گروه عقب گرا نیز رو شنگر کاوشهای فرهنگی وادبی فرهنگیان قرن ده ویازدهٔ هجری درسرزمین ماست.

محیط علمی وادبی سر زمین شکو همند و پر افتخار «روه» رادرین عصر قسما، شعله های فروزان ،عرفان و معر فت الهی فرا گر فته بود، ودر اکثر محافل علمی وادبی ما مشعل های تابان عر فان شعله وربود، شیخ صاحبدل ما که نیز مولودشرایط همین عصر واز تمام جریانات علمی ، ادبی و عر فانی آن متاثر بود باوجود داشتن طبع روان و سر شار شعری و قدرت نو یسندگی وتالیف پابه عالم تصوف نهاد وچنان پیشر- فتهای سرا یعنی درین راه نصیبش گردید که به قول نو یسند گان و مورخین آنزمان مقام شامخی را درین منز لگاه کمایی نمود، اشعار آتشین عارفانه سرود ، که شنیدن وخواندن آن هم اکنون هر صاحبد لی را به وجد میا ورد و اشك در چشمانش سرا زیر میشود.

من درین مختصر نگاهی به‌زندگی‌نامه و چشم انداز گذرای به‌شرح حال آن شیخ بزگوار وعارف نامداروشاعر شیرین سخن ، نخست از نبشته ها وگزار شهای مور خین،واقعه نگاران و تذکره نگاران‌شروع می نمایم و خواهیم دید که از متون کهن در مورد دوی چه برمی آید؟ وبه کدام ابعاد شخصیت شیخ روشنی‌می افگند، وتا چه حد در درخشش چهره تابناك آن مرد عرفان ،دانش‌وفرهنگ باما یاری‌ومعاونت کرده میتواند .

قدیمترین اثریکه راجع به زندگانی‌خصوصی و عرفانی وی تا اندازه معلو مات مبسوط و مهمی ارائـــه‌میدارد، مخزن افغانی نعـــمت الله هروی نورزایی است که تقریباًهجده‌سال بعد از وفات شیخ تالیف و تکمیل گردیده است . یادداشتهاوتذکرات این کتاب نه تنها از نگاه قرب زمان به عصر شیخ‌مورداعتمادپژو هشگران و منقدین ادب‌ودانش قرار میگیرید بلکه از ین‌رهگذرنیزدر خور اطمینان و قبول است کـه مولف مخزن باشیخ روشنضمیر مادر هندو ستان یکجا و محشور بود.

گزار ش صاحب مخزن دراحوال‌شیخ چنین است :

«ذکر آن عرفان پناه آن سوخته‌نار الله، آن همای اشیان تفرید ، آن عنقاء قاف تجرید، آن دردریای‌وحدت (همه هیچ) شیخ بستان در ابتداء جوانی از روه (۱) به هندوستان آمد، ودر قصبهٔ سامانـــــه

---

(۱) هانری جارج راورتی ۱۸۲۵ـ۱۹۰٦ ع) در کتاب
Notes on Afghanistan andbluhchistan

حدود اربعهٔ سر زمیـــن روه‌را چنین تعیین میدارد : روه ســر زمینیست که پښتو نها درآن‌زندگی‌دارند ، و همین مرز مسکن شـــان است. درقستمهای شرقی‌روه‌کشمیرغرب آن دریای هلمند، شمال آن قاشقار و جنوباً به بلو چستان‌ملحق‌است (روهی ادب ج ۱ ص ۲۲)

محمد قاسم هند وشاه فرشته درسنه ۱۰۱۵ هق حدودو ثغور روه‌را چنین تعیین داشته اســـت : روه‌عبار تست از کو هستان مخصوص که باعتبار طول از سواد (سوات) بجور (باجوړ) تاقصبهٔ سیوی که از توابع بکر است ، وبا عتبار عرض‌از حسن ابدال تاکابل و قندهاردر حدوداین کو هستان واقع شده (روه‌در ادب وتاریخ مقاله لوی استـــاد پوهاند عبدالحی حبیبی، آریانا ، شمارهٔ ٤ سال ۱۳۵۳ ش).

سکو نت اختیار کرده و خود رادر لباس تجارت مخفی میداشت، و آن تدارك اندك دست مایه بود، که بیع شرعی میکرد، وسود وجه حلال را دروجه ضروریات موافق شرع قسمت می نمود، و محتاج وسایل و در مانده را دستگیری می کرد، و صاحب در دو شوق بود، و چشمان شریفش هرگز از اشك خشك نبودو چندان درد داشت که گویا الم و محنت تمام عالم رابردل او تسلیم کرده اندو هر ساعت آه های درد ناك ازجگر خون آلوده برآوردی وباوجود این همه سوز و درد پانزده سیپاره قرآن وظیفهٔ یومیهٔ ایشان بود، ودردوروزختم قرآن کردی، وبعض اشعار پښتو را بصورت حزین درد ناك که سنگ را به گریه آوردی می خواندو اشك از چشمش میریخت، وآخرشب که یك پهر می ماند وضوتازه می ساخت وکمترین محرر متصدی این تاریخ مدت یکنیم سال درآخر در سفر دریا که به بندر گوه رفته بود، درخدمت ایشان شب وروزهمراه بود، واکثر خوارق به نظر در آمده شبی در دریاطوفان پیدا شد، چنانچه خلایق دست از جان شستند و هریکی به نیاز و دعا به درگاه قاضی‌الحاجات مشغول گشت چون این فقیر را به خدمت ایشان رابطهٔ بندگی واخلاص تمام بود در آن حال بایشان عرض کردم که وقت مدد است، تبسم فرمودند خاطر جمع دارید، دغدغه نیست، به مجرد این سخن گفتن طوفان فرو نشست وباد مرادوزیدن گرفت، وجهاز از مهلکه خلاص شده راهی شد. وچون ازسفر گوه معاودت نموده به احمد آباد رسیدیم ایشان را اسهال کبدروی داد. فقیر را فرمودند که ای فلان کس وقت سفر من رسیده، بایدکه خودبه تجهیز وتکفین من خواهی پرداخته با الراس والعین اقبال نموده، روز جمعه هفتم ماه ربیع الثانی سنه ۱۰۰۲ (اثنی و الف) وقت نماز خندان و فرحناك به محبوب اصلی واصل شدند و روح شریف شان از مطمورهٔ خاك به معمورهٔ افلاك رسید.

به موجب امر ایشان در خدمت دقیقه فرو گذاشت نه نمود، ودرمقابر غربا برد، تا دفن سازد، در زمانیکه خواست ایشان را در قبر بنهند آواز خواندن قرآن به گوش من رسیدبه تخصیص این آیت که در سورهٔ کهف وارد است.

«فقالو اربنا الله» از هیبت آن‌صدالحظۀ از هو ش رفتم بعد از زمانی ایشان را به خاك سپردم . دیدم که‌لبهای ایشان درحرکت است. بخاطر رسید. که مبا دا سکتنه شده باشد،چون نیك ملا حظه کردم اثر زندگی نبود... در خاطر گذ شت که اگـراحوال ایشان بعد از نهادن در قبر معلوم شود بهتر است . چون شب‌بر بستر تکیه نمودم، در واقعه‌دیدم که ایشان در قبر خود اسوده اند وفقیر بر سر قبر (ایشان) ایستاده فریاد کردند که فلان کس درزمانیکه‌آن دو فر شتۀ با هیبت تمام آمده از من پرسیداند که: من ربك ومن‌دینك‌ومن نبیك ـ تا آخر من گفتم : قل اللهم مالك الملك تو تی الملك تابغیرحساب و همچنین چند آیت در اثبات وحدانیت خواندم ایشان‌گفتند مرحبااهلا و سهلا گوارا باد ترا بهشت۔ این بگفتند و بر فتند، در ین ولابه‌فر حت تمام آسوده ام ، خاطر جمع دار ، چون از خواب در آمدم حقیقت‌رابه جمعی از یاران گفتم گـفتنددر جنت احوال ایشان هیچ عجب‌نیست(۲)

افضل خان ختك ( و فات ۱۱۸۳هق) در تاریخ مر صع (تا لیـــف ۱۱۲۲ ـ۱۱۳٦ه ق)نبشته های‌مخزن‌افغانی را ا ختصاراً بزبان مادری شیخ بستان بر گردانده و چیزی دیگر درموردبه‌آن نیا فزوده‌است(۳)

علاوه از تذ کرات ویاد داشت‌های‌این دو مورخ یاد شده در موردشیخ گزارش محمد هوتك (تولد ۱۰۸٤ هق) دا نشمند و مورخ و تذکره‌نگار چیز فهم ما نیز قابل یاد آوری‌ودرخور دقت است ، محمد در پته‌خزانه شرح حال این عارف را چنیـــن‌نگاشته است :« پدرم از قدماروایت کرد: که شیخ بستان از قوم بریخ بود، ودر ښوزاوك خانه داشت، پدرش محمد اکرم رحمة الله علیه‌هم‌ولـی خـدا بـود واز ښواوك آمدو بر کنار هلمند سکو نت گزید وبـه‌عبادت خدا مشغول بود.

نقل کنند: که شیخ بستان از حضور پدر خویش استفاضه نمود،

---

(۲) مخزن افغانی ج ۲ص۷۳٤ـ۱۹٦۲ ع ، داکه ، بنگال .

(۳) تاریخ مر صع ص ۵۲٦ـ۵۲۷به تصحیح و مقد مه و شــروح مرحوم استاد کا مل مو مند، طبع پشاور ۱۹٤۷ یونیو رستی بك . ایجنسی.

در ایام جوانی به هندو ستان رفت،ودر آنجا شهر به شهر میگشت، و
آثار قدرت را تماشا میفر مـــود، وقتیکه به وطن آمد، به سال ۹۹۸ هق
دربیان اولیا الله کتاب بستان الاولیاء را نو شت، وپدرم رحمة الله علیه این
کتاب را در بنوراوك بخانهٔ حسن خان بریخ دیده بود، که شیخ بستـــان
علیه الر حمه در آن کتاب احوال وکرا مات و خوارق عا دات بسی از
ولیاء پښتون را نو شته بود، و حصه زیادی از اشعار دیگران واشعار
خود هم نقل کرده بود، این شعرزامن از پدر خویش شنیدم که اشعار
شیخ بستان است رحمة الله علیه »(٤)

ما در مورد شیخ بیش ازمدارك فوق الذکر چیز د یگری در دســـت
نداریم، این تذکار ها هر یك به نوبهٔ خود در شنا سایی و روشن نمودن
افقهای تاریك زنـــد گانی شیخ ارزشمند و مفید به نظر اید ، و هر یك
باوجود اینکه تنا قضی در عمومیات با هم نه دارند، بلکه یکی مکملـــی
دیگری نیز پنداشته میشوند.

نعمت الله در تاریخش شیخ راشخص صاحب حال و صاحبدل
معرفی میکند، خرق و عادات ویرا نیکو بیان میدارد .

افضل خان ختك نکات بر جسته‌ای را درباره‌وی ازنبشته های مخزن
ترجمه داشته تر جمهٔ قسمتهای ،آخیر نبشته ها ی مخزن در تاریـــخ
مرصع نیا مده است ، از امکان بعیدبه نظر نه می نماید گو اینکه : نسخهٔ
از مخزن را که افضل خان بدسترس داشت نلقص باشد و یا هم شاید
مورخ تر جمهٔ این بخشها را ضروری نپنداشته واز ترجـــمهٔ آن صـــرف
نظر کرده است .

هر گاه پټه خزانه را ورق بزنیم وشرح حال آن عارف بزرگوار را مرور
نمایم نکاتی مهمی رادربارهٔ زندگی وی می یابیم که سیمای عر فانی وادبی
شیخ راهر چه تابنده‌تر جلوه میدهد. بصورت عموم ازین یاد داشتها و
تذکار ها شرح حال و شنا خت نامهٔ شیخ را چنین خلاصه کرده‌میتوانیم.

(۱) اسم، شهرت ، زاد گاه ونسب:

---

(٤) تر جمهٔ پټه خزانه ص ٢٦ ترجمه از لوی استاد پوهاند حبیبی
طبع سوم ١٣٥٤ ش ـ کابل .

اسم شریف ویرا محمد هوتك درپټه خزانه محمد بستان ضبط نموده که فرزندمحمد اکرم بود. درحلقه های عرفانی وعلمی وادبی به شیخ بستان شهرت داشت. زاد گاه‌ویرا همین مورخ وتذکره نگار منطـــقه ښوراوك قند هار وانمود کرده‌است.

شیخ بستان به قبیله بړیـــــخ پښتو تنها نسبت داشت. پدرش نیز شخص صاحب حال‌بود، ازښوراوك به هلمند رفت ودر کناره های‌هلمند اقامت گزید. شیخ به هندو ستان نیزسفرها کرد. ودرهندو ستان پیشهٔ تجارت داشتی، درآخیر عمـــر نیـــزدرهندو ستان به سر مـــی بـــرد و در همان دیار جهان خاکی را وداع‌کردو سوی جاودانگی رخت کشید.

دریکی از مراجع متذکره ازسال‌تولد وی خبری نیست، اما میتوان تخمین کرد که شیخ شوریده حال‌ما درحـــدود ۹۲۰ هق درښوراوك قندهار چشم به‌جهان کشوده‌باشد.

**آثارو تالیفات شیخ:**

شیخ بستان بړیخ مرد دانشمند،صاحب قلم و سخنور بود. بزبان پښتو شعر میسرود و کتابی تالیف‌کرد بنام بستان الاولیاء که پدرمولف پټه خزانه داود خان هوتك (۱۰۲۹ــ۱۱۳۷هق) آنرا در ښوراوك‌قندهاربه منزل حسن خان بړیخ مشاهده و مطالعه نموده بود، ویاداشتهای ازآن برداشته بود، واشعار شیخ‌تیمن‌کاکړ(حدود ۵۵۰ هق (۵) و شیخ بستان‌را نیز از آن نقل کرده بود، که‌درزمان‌تالیف پټه خزانه همین‌یا داشتهـــا بدسترس مولف قرار داشت وبر اساس آن شرح این دو صوفی‌نامور رابا ترانه های دلنشین عارفانـــهٔ شان در تالیفش جا داد، وادب‌عرفانی پښتو را با ایندو چکامه نغزو زیباورونق خاصی بخشید.

محمد هوتك گوید: شیخ بستان‌بسال ۹۹۸ هق‌کتاب «بستان‌الاولیاء» تالیف کرد، که در آن شرح حال خوارق واشعار بسی از اولیا الله پښتون جمع گردیده بود. این تالیف‌ارزشمند شیخ فعلا بدسترس ما قرار ندارد، ولی امید داریم چون سایرآثار کهن ادب پښتو چشم محققین ادب پښتو بدر یافت و مطالعهٔ آن روشن شود. محققین وپژوهشگران

---

(۵) پټه خزانه خطی ص ۲۶ــ۲۷

ادب پښتو این کتاب نایاب شیخ‌رادرزمره تذکره‌های قدیم پښتومعرفی داشته‌اند وبعضی آنرا همگون کتب‌تاریخی قلمداد میکنند . (٦) .

**شعر شیخ بستان بړیڅ :**

باتاسف باید یادآور شویم‌که جزیك پارچه ترانهٔ آتشین‌عرفانی شیخ چیزی دیگری در دست نیست . این‌پارچه شعر که آنرا «بدله» خوانندد‌ر اوراق پټه خزانه محفوظ است .

بدله فور میست از اشعارپښتو، مولف دانشمند «تاریخچهٔ سبکهای اشعار پښتو» در باره این‌فورم چنین نگا شته اند : «این سبك از بقا یای سبك اقدم وباستان زبان‌ملی است ، که شاید در دوره های قبل نیز وجود داشت ، چون ایـــن‌سبك ملی قح و خالصی بوده واوزان آن هم تماما ملی است . ودربین‌ملت‌ما نیز آنقدر محبوب واقع شده که‌تا کنون آنرا پیروی میکنند بنابرآن‌به‌جرآت گفته میتوانیم که این سبك شعر از خصا یص زبان پښتو بوده،و با این زبان توام افریده شده واز آثاریست که آریا نهای قدیم‌واجدادپښتو نها از خود مانده اند.

این سبك مخصوص‌به اشعاریست‌که پښتونها در بزم ورزم ودرسفر وحضر بین خود می خوانند و هر شعر از خودیك لحن علیحده و طرز سرودن دارد، که تاکنون بیـــــن‌پښتو نها بنامهای مختلف زنده‌ودر بسی از نقاط (سپری بدلی) یعنـی‌غز لهای سوار نا میده میشود. این گونه اشعارتابع عروض‌وبحور معموله‌عربی وپارسی نبوده واز خودبحور جداگانه دارد ...» (۷)

مطلغ این شعر (بدله) راکســرخوانند و چنین ترانه ها را علاوه‌از کسر به بند ها تقسیم کنند،هربندحاوی سه مصراع ، چهار مـصراع

---

(٦) رفیع ، حبیب الله ، دپښتوپخوانی تذکری ص۳۱ ـ۳٤ ـ طبع ۱۳۵۰ ش، کابل ـ انجمن تاریخ و ادب. وهم‌دیده‌شود نومورکی‌مورخین

(۷) سالنامهٔ کابل ۱۳۱۹ ، ص۱٦٦ ،نبشته لوی استاد پوهانـــد عبدالحی حبیبی .

(دوبیت) پنج مصراع، شش مصراع(سه بیت) وبه‌همین ترتیب بندهای آن بیش‌ازشش مصراع نیز باشد(۸)

شعر ملی‌شیخ بستان حاوی کسروچهار بند است ،کسر آن دومصراع دارد ، بدین تر تیب :

اوښکی می څا څی پر گریـــوان‌یو وار نظر که پر ما

راسه گذر که‌پرما

مصراع اول پانزده هجاو مصراع‌دوم هفت هجا ست ، هر بند آ ن حاوی دو بیت اصلی ویك بیـــت‌تکراری کسر است .

مصراعین اول بنداول هریك چهارده‌هجا و مصرا عین دوم آن هر یــك شش هجا ست ، مصراعین اول بندهای دوم ، سوم وچهارم، با مصرع اول کسر همگون بوده، هریك آن‌پانزده و مصراعین دوم بند ها نیز ماننــد مصراع دوم کسر هفت هجاییست .

اشعار ملی پښتو را باساس سلایبل و هجا تقطیع کنند، صحت وتقم آنرا نیز از ین طریق معلوم دارند(۹)

چون شعر شیخ بستان از رهگذرشکل در فور مهـا ی ملـی اشعار پښتـــو ســـر و د ه شـــد ه ،فلهذا من نیز مصر عها وبند های آنرا با ساس سلایبلها تفکیك‌نمودم.

موضوع و مضمون پارچه شعر پښتوی شیخ عرفانی و تصو فیست‌و نکته های بدیع عر فانی در آن به‌گونه های زیبا وشیوا بیان شـــده است که جلوه های عرفانی آن رونق‌افزای اشعار عر فانی زبان پښتو است،اینك ترجمۀدری این‌نشیده‌زیبای‌عرفانی را درین‌جا میاورم .

اشك در گر یبانم میچکد، باری‌به‌من نظری به فرما

بیا وبر من بگذر

---

(۸) بنگرید: دخلکو سندری، تالیف محترم حبیب الله رفیع ص ۲۴٤ ـ۲۵۲، طبع ۱۳۵۰ ش ـ کابل ـ انجمن تاریخ .

(۹) پښتنی سندری ، ج ۲ مقدمه‌ص (ص) طبع ۱۳۳۵ ـ پښتو ټولنه ـ کابل .

آتش عشق تو دلم راکباب ساخت خوب ناتوان و فشرده ساخت
چون‌دلم‌مفتون توگشت بایدبگذارم (در عشق‌تو) خودرا زبون‌ساختم
اشك در گریبانم میچکد باری به‌من نظری به فرما
بیا وبر من بگذر

* * *

نظری برحال من بینداز، که‌رنجورافتاده ام
به ماتم وسوگ‌گرفتارم
از دلم خون می چکد، وبه خون‌خویش گلگونم
به آتش سو خته وکبابم
اشك در گریبانم میچکد باری به‌من نظری به فرما
بیا وبر من بگذر

* * *

از درد وسوز (عشق) همواره‌ناله‌وفغان میکنم
فریادونو حه دارم
مدت کو تاهی به هیچ جای آرام‌وسکون ندارم
راحت نمیتوانم
اشك در گریبانم میچکد باری به‌من نظری به فرما
بیا وبر من بگذر

* * *

ای خداوند تو از حال دلهای‌افگارآگا هی
وهمرای بیچار گانی
به عزت خویش (بستان) رابه مهرخود بنواز
واز گناه وی رادوربدار
اشك در گریبانم میچکد باری به‌من نظری به فرما
بیا وبر من بگذر
این‌ترانهٔ زیبای‌عرفانی گواه‌حقیقتیست‌که :«افکار دقیق عر فانی وبیانات
لطیف عرفا بلا شك الهام بخشـــ‌ادبیات جهان بوده وتاثیر به‌سزایی
در آن کرده است ، وبدون شك این‌افکار منشاء لطافت معنوی وبیانات

آنها پایهٔظرافت وصنایع‌لفظی ادبیات‌جهان بوده است» (۱۰)

**عرفان شیخ :**

شرح مراتب و منازل عرفانی وشوریده حالی شیخ بستان ایجاب تحقیق وبحث فشرده ومفصلی را میکند. استادان گرامی پو هاند عبدالحی حبیبی و دکتر روان‌فرهادی‌در مورد عرفان سیرو سلوك وسوزو گداز تصوفی وی مقالات مفیـــدی‌نو شته اند، که ضم این مجموعه باشد، من لازم نه دیدم که بیشتردرباره‌بحث نمایم و خوانند گـــان محترم را در باره شناسایی معرفت‌و مراتب عرفانی شیخ به مقالات این دواستاد پژو هشگر و ژرفنگر دعوت‌می نمایم .

دراخیر باید خاطر نشان ساخت‌که عرفان شیخ بستان را نیز بایـد به قول یکی از نقادان ادب‌و محققین‌عرفان که گو ید:

«... ا مید است آنانی که خودراجوینده و پوینده‌یی راه حقیقت می انگارند، عرفان کهن ما را درکلیت‌آن به مثابه شا خهٔ میرنده تکا مل به مثابهٔ یك فر آیند سر پاانحطاطی‌و واپس نگرانه در نظر نگیرند .

عرفان پالا یشگر ، عرفان افریننده،عر فانیکه شور همبستگی وهمگرایی انسانها را بر می انگیزد ، وانسان‌رابه‌مثابه والا ترین مظهر تکامل ارج میگذارد .عرفانیکه پیام‌آور وارستگی‌وداد گری است ...» (۱۱) یك پدیده پیش پا افتاده و پو سیده‌یی فرهنگی‌نه پنداشت . زیرا عرفان شیـخ‌مـا جنبهٔ انسانی داشته ودر شنا خـت‌سر شت ادمی از آن بهره‌یی بدست آید .

---

(۱۰) فر هنگ لغات واصطلاحات‌وتعبیرات عرفانی، دکتر سیدجعفرـ سجادی ص ٦ طبع دوم ۱۳٥٤ ش‌ـتهران .

(۱۱) رك ، واصف باختری ، سرشت و سر نوشت انسان از چشم انداز جلال الدین محمد خراســانشماره ٤ سال اول ۱۳٦۰ ص ۱۰٦

خېړندوی دوکتور دولت محمدلودین

# دشیخ بستان بړیڅ دشعر دلغاتو احصائیوی څېړنه

مخکی له دی چی د شیخ بستان بړیڅ د هغه یوه شعر په باره کی چی بدله نو میږی لغوی څېړنه پرمخ بو تلله شی ، ښه به داوی، چی د شیخ بستان بړیڅ د پیژند گلوی په باره کی هم یو څه معلو مات دپټې خزانی د یادونو له مخی وړاندی‌شی.

په پټه خزا نه کی د شیخ بستان په باره کی راغلی دی ، چی په قوم بړیڅ و، او کور یی په ښوراوك کیږو.

د پلار نوم یی محمد اکـرم ، دښوراوك نه یی د هلمند غاړی ته کوچ وکړ او په یوه کوډله کی یی د فقیرانواو بزرگانو په خیر استو گنه کـول غوره کړل . دشیخ بستان پلار ، چی د فیض څښتن و ، نو شیخ بستان ورڅخه ډیر فیض تر لاسه کړ، بیا په ځوانی کی هندو ستان ته لاړ او هلته ښارپه‌ښارو، گرځیداوډیر مشاهدات یی وکړل، کله چی بیر ته خپل‌هیواد ته راستون شو، نو په (۹۹۸) هجری کال کی یو کتاب چی د (بسـتان الاولیاء) په نوم یادیږی وکیښ (۱) په دغه کتاب کی یی دپټې خزانی له قو له د پښتنو او لیاء حالو نـه ،کرا متونه او د عاداتو خوارق کښلی و، ددغه کتاب له ډیرو اشعارو څخه‌زمونږ لاس ته د محمد هوتك دپټې

---

(۱) محمد هوتك، پټه خزانه ، د عبدالحی حبیبی په تصحیح، تحشیواو تعلیقاتو، پښتو ټولنه، کابل ـ۱۳۲۳

خزانې په مرسته يوازې يو شعـــر راسيدلی دی . چې بدله نو ميږی او اوس به يې په باره کې ضـــروري يادونې او څېړنې وړاندې شي .

د شيخ بستان بړيخ دغه شعر ته‌که وکتل شي نو د بيتونو شمير يې ديارلسو (۱۳) ته‌رسيږی اود بندونوشمير يې پنځه دی . دلته ديوی‌خبری يادول ضروري دی ، هغه دا چې په‌دغو پنځو بندونو کې يې لو مړی بند يوازې يو بيت دی او نور بندونه يې‌هر يو د درې بيتو درلودونکی دی .

دغه لو مړی بند چې يو بيت دی کسر يا سرو کې ګڼل کيږی او په نورو څلورو بندونو کې يې ورو ستی‌بيت‌دکسر يا سرو کې په شکل راغلی دی البته د پښتو هغه سندری چې دبدلی‌په نوم ياديږی له دغه ډول کسر او ډول څخه به خالی نه وی ، په‌حقيقت‌کې دا دپښتو د بدلی په نوم اشعارو يو شعر دی، چې په خاص ډول د هنر مندانو او مينه والو له خوا ويل کيږی .

د شيخ بستان بړيخ په شعر کې‌که‌لومړی بند ياکسر چې په دغه شعر کې پنځه واری تکرار راغلی په يوه‌بيت حساب شي نو ددغه شعر د ټولو بيتو نو شمير يې (۹) بيتونوته‌ټيټيږی، همدا رنګه که کسر يې په بند کې‌ونه نيول‌شي نو په دی‌حساب‌يې د بندونو شمير هم له پنځو څخه څلورو بندو نو ته ښکته کيږی .

دشيخ بستان‌بړيخ‌د (بدلی) په‌نوم‌شعر کې هغه بيت، چې د سرۍ کې په ډول راغلی دی او په هر بند کې‌تکرار شوی دی ، دا دی :

او ښکی مې څاڅی پر ګريوان يووار نظر که پر ما

راسه ګذر که پر ما

د شيخ بستان بړيخ هغه شعرچې په باره کې‌به يې لغوی او احصا۔ ئيوی څېړنې وړاندې شي په بشپړډول دا دی، په لاندی ډول دزياتـی څرګند والی له پاره وړاندی کيږی:

او ښکی مې څاڅی پر ګريوان يووار نظر که پر ما

راسه ګذر که پر ما

* * *

د مينې اوردی زما زړګی وريت‌په‌انکار کينا

ښيې تارو نار کينا

خود به ویلیږم چی می زړه په‌تامفتون کینا
ځان می زبون کینا
او ښکی می څاڅی پر ګریوان یووار نظر که پر ما
راسه ګذر که پر ما
* * *
وکه نظر زما پر حال چی پروت‌رنځور یمه تل
په‌وير ناسور یمه‌تل
له زړه می څاڅی وینې سور په‌وینو خپل یمه تل
په اور جلبل یمه تـــل
او ښکی می څاڅی پر ګریوان یووار نظر که پر ما
راسه ګذر که پر ما
* * *
له درده سوزه تل ناری اوغلبلی‌وهمــــــه
کړزی سوری و همـــه
یو آن می چیری نه آرام نه تیکاو نه وینم
نه راحت کړنه وینـــــم
او ښکی می څاڅی پر ګریوان یووار نظر که پر ما
راسه ګذر که پر ما
* * *
د خوږو زړو له حاله ته یی ای باداره آګاه
یی دبی وزلو همــراه
د خپل عزت په روی «بستان» ته‌کړه د مهر ښندل
کړی‌له‌ګناهه‌ګوابدل
او ښکی می څاڅی پر ګریوان یووار نظر که پر ما
راسه ګذر که پر ما
* * *

د شیخ بستان بړیځ دپورتنی‌شعر ټول لغات او شمیرل شول.
لو مړی دا څرګنده شوه ، چی په‌دغه‌شعر کی شیخ بستان بړیځ ټول ناال
څومره مختلف لغات استعمال کړی‌دی(البته دلغاتو بیلا بیل حالتونه‌او

لغوی تر کیبونه هم هر یو دبیل لغت په ډول پیژندل شوی‌دی)، همدا رنگه په دی ترڅ کی د احصائیوی میتود له‌مخی دا هم څرګنده شوی ده، چی‌په دغه شعرکی هرلغت یادلغاتو حالتونه‌څوڅو واری استعمال شوی دی. کوم لغات چی د شیخ بستان بړیڅ ډیراستعمال کړی هغه هم څرګند شوی او کوم، یی چی لږ استعمال کړی‌دی‌هم معلوم شوی دی.

لکه څنګه چی‌د شیخ بستان بړیڅ‌دبدلی د احصا ئیوی قا موس څخه جوتیږی،شیخ بستان‌بړیڅ ټول‌دواتیامختلف لغات (۱۸٤) واری استعمال کړی دی، یا په بله وینا دشیخ‌بستان‌بړیڅ بدله دو اتیا مختلف لغات او (۱۸٤) مستعمل لغات لری.

د شیخ ستان بړیڅ د بدلی څخه‌جوړه شوی لوړه ا حصائیه چـــی ددغی بدلی په لغوی څیړ نه کی پوره‌اسانتیاوی راولی.

لکه چی دشیخ بستان بړیڅ دشعرله‌پورتنی ا حصا ئیی څخـــه څر-ګندیږی. ده په خپل دغه شعر کی‌تر ډیره پوری کو شش کړی دی‌چی زیات په کی د پښتو سو چه لغات‌استعمال کړی، که څه هم څه عربی مستعار لغات لکه : حال، آرام، ،راحت، عزت او همدا سی نور کوم مستعار لغات چی لری هغه نه دغږله‌مخی‌او نه د معنی له مخی اوریدونکو او ویو نکو ته‌نا شنا نه دی بلکـــه‌اوس هم په پښتو ژبی کی ډیرمروج دی. د پښتو ځینی‌لغات لکه ټیکاو نه‌ګوانبل او کوم یو بل که په دغه شکل کـــی نه‌وی نو د(ګـــوانبں)او،(ټیکاو) په شکل خو تر اوسه پوری په محاوره کـــی مشهور لغات ګڼـــل کیږی.

لکه چی لـــه ا حصائیـــی‌څخه معلو میږی، شیـــخ بســـتان بړیڅ په خپله دغه بدله کـــی (۲٦)مختلف لغاته هر یو دوه یاله دوو وارو څخه زیات تر اوولسو وارو یوواری استعمال کړی اود(۸۲)ټولو لغاتو (مختلفو لغاتو) له‌ډلی څخه‌یی‌نور لغات هر یو لغت یو یو واری استعمال کړی دی. له دی څخه د شیخ بستان بړیڅ د شعر سبك په ښه ډول څرګند یږی، چی شیخ بستان بړیڅ کوم لغات ډیر استعما-لول او کوم یی لږ استعمالول.

که دشیخ بستان بړیڅ شعر ته‌وکتل شی، نو ډیر څخه څرګندیږی چی ددغه شعر د متن تنوع د لـــږ استعما لیدو نکو لغاتو یعنی هغـــه

لغات چي په دغه شعر کي يو وارياُدوه واري استعمال شوي دي ، دغه شعر ته نوي والي او تنوع ورکوي.همدا رنگه همدغه لږ استعماليدونکي لغات دي ، چي قا موسي شتمني‌منځ‌ته راوړي .
همدارنگه د همدغو لغاتو له مخي‌داشيخ بستان بړيخ سبك هم ټاكل كيداى شي . البته هغه ځوك چي د سبك‌په پيژندلو او معلو مو لو كي ډير لاس لري هغه به ور ته بنـــــه‌ځير شي او موضوع به لابنه وځيړي.
دسبك په باره کي دو مره هم‌ويل‌کيږي چي د سبك پيژندلو له پاره يوازي هغه لغات چي په متن کي لږاستعما ليږي کفا يت نه کـو ي ، بلکه نور عوا مل هم شته چي دسبك‌په پيژندلو کلي مر سته کوي لکـــه غير عادي تر کيبونه ، ډير استعما ليدونکي لغات دا هم بايد ويـــــل شي .
چي‌دلغاتو سيما نتيکي (معنوي) اړخ‌دسبك‌پيژندلو له پاره ډير مهم اړخ گڼل کيږي (١)
په دغه شعرکي ځو لغاته لکه:(کرږي) چي اصلي حالت يي (کرږه) دي ،(ټيکاونه) چي د ټيکاو په شکل‌زيات شهرت لري ، او همدارنگه (گوابنل) چي د اسم په شکل يعني‌د(گوابن) په ډول زيات مروج دي ، که څه هم په لومړي نظر کي د ايستاريزم يا ارخايزم گو مان ور باندي کيږي ، خو دغه لغات لکـــــــــه‌څو مره چي معلو مات شوي دي يويي هم نه په ايستاريزم کي راځي او نه‌په ارخايزم کي، البته ددغه دو هـم ډول گومان کولو سبب يي‌په اوسنيوادبياتو کي لږ استعما ليده دي .ددغو لغاتو معناوي دپښتو قاموس دلومړي‌ټوك له مخي په دي ډول دي : (١) کرږه،صداى بلند ، (٢) ټيکاونه ، توقف و آرامي . د (ټيکاو) معني په دي ډول ده:تو قف، معيشت وگذاره‌سکونت ، آرام ، (٣) گوابنل (١) منع کردن از جنگ، (٢) تهديد کردن(٢).
په پورته ليکنو کي د ايستا ريزم‌او ارخا يزم اصطلاح گاني راوړلي شوي دي ، ددي له پاره چي پخپله‌ښاغلي لو ستو نکي د نو موړو‌لغاتو په باره کي ښه په غور سره سنجش‌وکړاى شي، چي په ايستاريزم يا ار خايزم کي په رښتيا سره نه‌راځي

---

(١) محمد نوري عثمان، واژه‌نامه‌بس امدي عنصري، مسکو ، ١٩٧٠
(٢) پښتو قا موس ، د پښتوټولني‌خپرونه ، کابل – ١٣٣٠ـ١٣٣٣ .

نو دهغو پېژندګلوي ورته د (لغت پوهنی) په نوم کتاب څخه وړاندي کېږي، په دی ډول : «هغه لغات ، چی نو مول شوی شیز او پدیده یی له منځه تللی وی، او دغه ډول لغاتو ته په ژبه کی نور د استعما لیدو کوم ضرورت نه لیدل کیږي، نو دغه ډول لغات د خپلو مفا هیمو سره یو ځای د ژبی څخه وځی دغه شان لغاتو ته په ژبپو هنه کی ایستا ریزم ویل کیږي (۱).

«ځینـی نور لغات هم د ژبی څخه وځی، دوتلو سبب یی دا نه وی ،چی نومول شوی شیز یا پدیده ګوندی زړه شوی ده، بلکه دوتلو سبب یی داوی، چی په ژبه کی دکوم شیز یا پدیدی دپاره دوخت د ایجا باتو سره سم دنوی نوم ایښودلو ته ضرورت پیښ شی ، په دی وخت کی د زاړه لغات ځای نوی لغت نیسی ، بیا نو هغه پخوانی عوض شوی لغت زړیږي او له ژبی څخه وځی (۲)»

د شیخ بستان بړیځ دبدلی پـه نورو لغاتو کی دغه لغات: (کینا) او (بنی) په شعری ملحوظ په دغه ډول لیکل شوی دی ، په حقیقت کی د (کی) او (نا) څخه (کینا) جوړ شوی د، (بنه) او (یی) څخه (بنی) جوړ شوی دی (کی) د (کړ) او (که) په شکل هم راتلای شی او (نا) د (نه) په ډول هم ویل کیږي ، چی پــــه اشعارو په تیره په لنډ یو کی د (نه) په شکل استعما لیږي (البته دلنډیو په پای کی).

د شیخ بستان بړیځ د بدلی نورولغاتوته که وکتل شی، ټول هغه لغات یا دلغاتو مغیره حالتو نه دی چی نن ورځ د پښتو ژبی په ادبیا تو او خبرو اترو کی مروج لغات ګڼل کیږي په عمو می ډول که د شیخ بستان بړیځ د بدلی محتوا او لغاتو ته وکتل شی که څه هم یی دویلو له و څنه دری نیم سوه کالو څخه زیات کلونه تیر شوی دی .

خو تر اوسه پوری دومره آشنا بریښی لکه د پښتو ژبی د اوسنیو وختو بدله ځکه مفهوم یی په ډیره آسانی سره د پو هیدو وړدی اولغات یی هم زیاتره هغه لغات دی چی په اوسنی پښتو ژبه کی ژوندی لغات ګڼل کیږي .

---

(۱) ځیړ نوال د کتور دولت محمدلغت پو هنه، پښتو ټولنه، کابل ، ۱۳۵۵ (۱۶۱ ـ۱۶۲) مخونه .

(۲) وګ: پور تنی ماخذ (۱۶۲)مخ .

دااحصائیوی میتودله مخې که وکتل شي ، نو ور څخه په ښه ډول څر-
ګندیږی، چې شیخ بستان بړیځ په‌خپله دغه وړه بدله کې د (۸۲) مختلفو
لغاتو له ډلې څخه یوازې (۲٦ لغاته د(دو) واړو څخه تر (۱۷) وارو پورې
لغات په تکراری ډول راوستي دي‌اودنورو(٥٦) مختلفو لغاتو هر لغت یې
یوازې یو وار یا په اصلي حالت یاپه‌اوښتی حالت استعمال کړی دی.له
دې څخه جو تیږی ، چې ددغه متن‌چوکاټ د لغاتو له مخې پوره پیاوړی
دی، د شیخ بستان بړیځ احصائیوی‌روښ او بدلی ته په ښه غـور
وکتل شي ، په هغه ځای کې چې‌شعری ملحوظ اړ کړی نه دی نو
زیاتره یې هر لغت یووار راوړی دی.

ن-پرو فیسور میر حسین شاه
ب - عبدالر حمن بلوچ

# په‌شیخ بستان بریشی احوالیءروش کنگا سیءسورخ وتذکره نویسوکانی گشگ

هجر یی پا نزد همی قر نـــا (عیسایی شانز د همی وهفد همی قر نان) کند هار شه اقتصاد، پالسیو دفا عیین بندو بو جی دیما برزین هندی واوند ات . شهر ای و ری راهی سرا کپتت که هندو ایران وای وطنانی دنی سیم سرانی سوداگریی کاروا ن شه همدانه گوستنت . شه پو جیین وا کی دیما په کابـــــلوخراسانی سا تنا ایجاگی سراواکی دارگ حتمی زانتگه بوت ، پمیشا به‌ای دوکین قرنان ای شهر هما دوری دو زورا کین واك ، ایرانی صفویو هندی گور گانیانی هم چمیی هندو جا گه ات چو که پانزده وار سریهلگر ببوت . اقتصادی پیما شهر و آیی ایشکو آ شکی دمگ آبات‌وآپ‌و کشار گری باز ات (۱) به همی گرو لانچی دورا یك آر پین مردی که‌آیی نام محمد اکرم ات و هلمندی کرو گورا به یك هلکی زند گیه‌کرت‌شه ایشی یك زاهگی ودی بوت که رندا و تی دوری مزن نام و توارین‌دانند گی بو تیت . په ای مز نیـن داننگ و سر پدین مردی احوالی‌پوه بو گا سی مزنین مرجع انت :

۱- تاریخ خان جهانی ومخزن‌افغانی که خوا جه نعمت اللهالهروی نمشته کرته .

۲ـ محمد هوتك بن محمـــــداؤدی پټه خزانه .

۳ـ افضل خان خټکی تاریـخ‌مرصع .

مخزن افغانی نویسو ك خواجه‌نعمت الله به‌اکبری دورا که شـه
هندی گور گا نیی (۹٦۲ـ۱۰۱٤ = ۱۵۵٦ـ۱٦۰۵) پاد شا هـــا ن ا ت
سلطنتیین ډگا رانی دیوانی با سك(که آ و هدان خا لصه گشتگه بوت)
اتیت و به جهانگیر ی وا کی زمانگادر باری وا قعا نی نویسو ك بو ت
وتا یازده سال همی کار آیی واکات .

۱۰۱۷=۱٦۰۸ سا لا آیرا شه‌اداریین کا را ن الاس کر تنت.شنت
که ۱۰۰٤=۱۵۹۵ سا لا خان خا ـنا نیا کتابخانی داروغه ات ، پدا شه
ایشی خا ن جهان لودیا شت و آ یی‌خد متا بدیما گپت ۱۰۲۱=۱٦۱۲
سالا به برار (۲) مخزن افغا نـــی‌نمشته کنگا بد یما گپت (۳) .

پټه خزانا محمد بن داؤدهوتك‌په شاه حسین هوتك نمشته کر ت
ووت په ای و جا ای و ړا گشیت :« دگه مناو تی در بارا لوښت ،مهر-
بانی کرت و گشت که و تی ا ی‌دیما گرگ و ارادا آسر بکنیـــــن
وپشتوی شا یرانی احوا لا بریبـــربکنین، و په ایشی که ا می پاد شاه
و بنالم خیلانی محبوب الـقلـــوب،شاه حسین خلد الله ملکه وسلطنته،
وت هم جوانین هبرانی واوند انت وپشتوی شئیرا وش دا ریت دگه من
هم لوښتون که همی انون ای کتا ب‌نمشته کـر تگ بیـت و پشتـو ی
شایرا نی احوا ل نز آور تگ ببنت.باید انت رو ش کر تگ بیت که من
وت شه سی سا لا به اینگو پشتو-نین بازین شایری‌احوالا نزآورتگون،
و هما رو چا ن که به پشتو نخوا هی‌دمگا چاره کرتو ن شه مرد ما ن شاـ
یرانی و شین احوا لا او شکتگو ن،وانو ن هما مچا نا بریبر گـــــون
پاد شاه ظل الله‌ی لو ښگا سیا یگـه‌کنین، ای کتا بی نام پټه خزانـــه
(چیرین ډ فینگ) انت . په ایشی‌که‌ادا هما حالا نا مچ کر تگو ن، کـــه
چیرا ئنت و درا کر تگ نه بو تتنت،مز نین خا لق مچین مسلما نـا نـا
بخشا ییت وا می پاد شا هـــــی‌سیا یگا مدام دا شتگ بیت،درگتی

که ای کتا با بدیما ګپتون ، جمعی‌روچ ات ، هجریی (۱۱٤۱) سا لی جمادی الثا نیی ١٦ .

تاریخ مرصع شه پشتـــو ی‌زوانی تاریخ و لبزا نکی مز نیـــن کتا با ن انت که به همی ګهیـــن‌وهدا ن ګو ن دوست محمد کا ملی زحمتا ن، شه پشاوری پو هنتو نی‌نیمګا شینك بوت .

ای سئیکین کتا بی ار زش په‌مزنین دانند ګك بستان بڕ یخی‌حالی رو ش کنګا ایش انت که یکـــــی‌ادګری پوره کنو ك انت و شه‌آوانی وانګك ودیم په دیم کنګا ای مز نین‌شایر و دانند ګی زند ګیی بـــاروا ګو نهو کسا ن چیز ی ودی کر تګه‌کنن، ای و ڕا که پټه خزانه آ یـی سری زند ګی و ګونهو و کسان آیی‌پسی احوا لا ڕو شه کنت ومخز ن آ یی زند ی ګهو سرو آ یی‌ګوازینګابه هندو ستان بیانه کنت . پـــټه خزانه شه آ یی پسی دپا و آ یـــی‌پسی هبر شه دیمی مرد مانی د پا انت . محمد هو تکی پس داؤد خان‌هجر یی ۱۰۲۹ سالا (۵) ۲۷ سال رندا شه بستان بڕ یخی زوال بوګاودی بو تګیت ڀمیشا آ مردم که شه آوا ن روایت بو تګیت مزن سا لین‌کند هاری بو تګه کننت که وت‌شیخ بستان بڕیخا هجر یی ۹۸۸(٦) سالادر ګتی که شه هند پدو یی بـــه کند هار آ ت دیستګنت و آ ی جندی‌و آیی پسی احوا لا شه آ یی جندا او شکتګنت . نعمت الله و ت‌شیخی‌زمانګی مرد می بو ته و چیزی که په آیی باروا ګشته آ یی وتی چم‌دیست‌انت . شه پټه خزانی ګشګی دیمـا شیخ بستان بڕیخی پس محمداکرم‌به شورا وك ګسی دا شتیت (۷)دګه ڀمیشا ا می شیخ باید همو دا ن‌ودی‌بو تګ بیت . سری‌تعلیما نا شه‌وتی پسا زر ت « ګشننت شه و تی پسابر کتی وا وند بو ته (۸) مګه ای‌نپ و کټ چنکر بو ته و بید و تی پساشه دګه مرد می هم تعلیم ګپتـــه اګه نه ؟ شر یا درا نه انت.آوختی‌تعلیما نی یك بهری عربیی صر ف ونحو ، حدیث و قر انی تفسیر،فقه‌واصول منطق ، مشا یی و اشراقیین حکمت، طبیعیات و ریا ضیات (۹)اتنت . محمد هوتك به و تی کتا ب

بستان الا و لیای تها شیخ بستا نبړیخی علم و زانگی نام و توا ری
یا تا کر تگیت و شه آ یی پشتو یشئیرانی دیما گشتگه کنن که و تی
پسیا یا کند هاری علمیین مد رسهو یا هردو کین هندان تعلیم کر تگیت.

شه محمد هو تکی هبری دیماشیخی پس شه شورا وك به هلمندی
کرو گورا لہت و بهکهکی تهازندگیهکرت ، ای آیگی سبب ممکـــــن
نیستگاری و بز گی بو تگ بیت .شورا وك پتہی و ز مستان مـلا یم
ولوا را سك گرم انت . ډگار یآواروادار ودر چکی نداریت آ پی کـــم
وور گیین آپ شه چا ها ن کـــــه۶۰ـ۶۵ مترا جـول انـت کشنـت،
بید گلا د گه چیز ی نداریت مرد میکشار گر و مالدار انت (۱۰) .

ای هبر که شیخی پس پدا شهآیی که شه شورا وك لہت و هلمندا
آت ، گجا اتیت درا نه انت مگـــهکیا سه بیت که بستی شهریایشکو
آشکا بوتگ بیت . په ایشی کـــهبست سر پد به پدین هلگرا نـــی
خرابیا ن انگته هم کسا نین شهر یوړا مننت ، چو که به شیخی کسان
سا لی یاور نا یی سری رو چا ن بابری زا هگ همایون بـه ۹۵۱ ـ
۱۵۴۴ هملة کرت و آیراگپت (۱۱).

شیخ بستا ن ورنا ئیا، گهاشهتعلیمی آ سر کنگا به هندا شت(۱۲)
وبه سا مانه زند گیه کرت . محمدـهو تکه گشیت :« او دا ن شه یك
شهرا به ادگرا چاره کرت وطبیعتیآثا رانا چارت (۱۳) ای هبر کـــه
ایو کا طبیعتی آ ثا را نا چار تواگهبید آ وا ن علم و زانگی بنجا، کتاـ
بخانه و هندی خا نقا ها نا هم چارهکرت ، گشتگه کنن که بستـــــان
بړیخی و ړی مرد می گون و تی آنکرعلم و زانگا تانکـا طبیعتـی آ ثا را
نچارت، خاص ای که آ یی دو ستنعمت الله هرو ی اداریین مز نین
کاری به و تی وا کا داشت و آ ییدگه همشهر ی ای ملا قاسمکند ـ
هاری به ملتانی مدر سا تعلیمـــهدات (۱٤) .

به هندا شیخ سودا گر یـــابدیما گپت وای سودا گر ی پهبزگ
و نیستگارا نی دستی گر گا ا ت وآ یی معنو یین کار ، دنیین کـــار
ونفسی پاکی و افاق و انفسی پټو پول ات . مخزن افغا نی اصلین
گشگ:« درا سودا گ ریا بد یمـاگپت و آ یینپ و کتها نا بریبرگون

شریعتی را هبندا بهره کرت ،بزگ‌ونیستگا رانی دستا گپت و وت درد و شو قی واوند ات . آ یی چم شه‌ارسا ن هشك نه و تنت و آنکردردی واوند ات چو که مچین جهانی دردو غما نا به آیی دلا داتگنت وهر کتره دل برو جگر سندین اپار گا ناگشت.سر ای درد و غمان ، رو چی تهـــا پا کین قر آنی پانزده سیپا را ونت‌و دو رو چی تها یکوار پاکین قرانا آ سره کرت . پشتو ی شئیرا ناگون‌انچو شین و شین گتهی ونت کـــه سنگی دلا ترا کینت ، و ا رس شه‌دو کین چما ن شلان اتنت . همی‌که شپی یك پاسی منیتن دست نمازه‌گپت وخا لقی نیمگا مشکو له بوت وهر نما ز ی وهدا دست نمـــازه‌گپت » (١٥) .

شیخ بستان پدا شه تچکیـن‌وهده و وختی گوا زینگا به سا ما نه و هندو ستانی د گه جا گا ن پدویی‌کند هار آت ، ای هبر شه پتهـــه خزانا ای و ہا زانتگه بیت :« همی‌که وطنا آت هجر یی ٩٩٨ ســـالا او لیا الله‌ی د رستی کنگا دبستان‌او لیای کتا با نمشته کت» (١٦)ای واری باید به کند هار دیر هه‌کرتگ‌مه بیت په ایشی که به مخزن‌افغانیا پدا آ یی دس نشا ن به هندا داتگ‌بو تگیت . نعمت الله گشیت :« ای کتابی نویسو ك يك ونیم سال ، گها به زری سفرا که به گو هـــی بند را شتت (١٧) شپ و روچ آیی‌دیما ا ت (١٨) همی که شه ای‌سفرا واتر ببو ت و به احمد آ باد رست‌نا درا هی گون آ یی دپ وار ت و زوال ببوت ـ چوش که نعمت الله‌گشتگیت :« جمعی روچ ربیع الثانیی ما هی هفتمی روچ ١٠٠٢ سا لـــی(اثنی والف) نمازی و هدا و شحال به و تی اصلین دوستا رست » .

آثار :

شه مخزنی دیما که گشیت :«پشتوی شئیرا نا ...» ونت ،زانتگه بیت که ای مچین شئیر یا آ وانی گیشتر کی آ یی جندی بو تگنـــت پته خزانه رو شه کنت ستر که به‌آیی د گه کتابی بستان الا و لیـــا «وتی جندی و دگرانی شئیرا نـــاآور تگیت مگه شه آ وا ن بید هماـ وان که به پته خزانا انت د گه‌چیزی‌نه منتگیت» . باشد .

محمد هو تکه گشیت :« که آیی پس رحمته الله علیه ای کتا با به شورا وك به حسن خان بریخی‌لو گا دیشت » ای کتاب ر ندا شه آیی آیگا به کند هار نمشته کرتگ‌بوتگیت و به آ یی جندی‌لوگ وسیا۔ دانیا تا محمد هو تکی پسی زندا اتیت » (۱۹) .

ایش انت آ یی کلا می چیدگ‌که به پته خزانا سیا یگ انت .

ارس شلا ننت به منی زیا ،یك‌واری سونی من بچار ــ بیا چاری منی نیمگا بکن، تہی عشقی آچ منی‌زر دا سہتگیت ــ سك منا بی واك وتوك کر تگیت . و ت د ل کپ‌وجگرآ په بیت که تی سرا دل دا تگو ن ــ وترا بی توك کرتگو ن ارس شلاننت‌به منی زیا ، یك واری سونی مــن بچار ــ بیا چاری منی نیمگا بکن منی‌نیمگا بچار که مدام رنجور گپتگون۔ ماتم و سو گا نشتگو ن شه منــی‌دلاه و نه چتهنت و گون و تی هونان سہرا ون ــ سہتگ کبا بو ن مدام‌ارس شلا ننت به منی زیا ، یك‌واری سونی من بچا رــ بیا چاری منــی‌نیمگا بکن شه عشقی دردا مدام‌نالگا او ن و کو کارا ن جنین ــ هیچ‌جاگه‌ای کتره ای آ رام نه انت منا، آساك نه انت منا .

ارس شلا ننت به منی زیا ،یك‌واری سونی من، مچار ــ بیا چاری منی نیمگا بکن اوخا لق ! ته شه‌پیین د لانی حالا سر پدی، وگو ن بزگ و بی وا کانی ! به‌و تی عزتا«بستانا» به و تی مہرا بنا زین۔وشه گنا هان آیرا دور بسات ارس شلا۔ننت به منی زیا ، یك واری سو نی من بچار .

بیا چاری منی نیمگا بکن

حوا شی :

۱ـ ریاض الاسلام ، Indo persian Relation بنیاد فرهنگ لاهور ، ۱۹۷۰ص۱٤.

۲ـ Brar به نا گپوری‌جالی دمگا به مدیه پر دیس ایا لتا، مرو چین

۳ـ سکینه ، دکتر منارســی‌برشاد ، تاریخ شاه جهان دهلی ،۱۲،۱۹۷۸ دیم .

٤ـ پټه خزانه با حوا شي و تعليق پوهاند حبيبي ، کابل، ۱۳۵٤،
۳ ديم . Historicul Reserach

٥ـ پټه خزانه ۹۲ ديم .
٦ـ پټه خزانه ۲٦ ديم .
۷ـ کند هار و لايتي‌ولسوالي‌اى انت .
۸ـ پټه خزانه ۲٦ ديم .
۹ـ صديق، دکتر عيسى، تاريخ‌فرهنگ ايران . تهرا ن ،۱۳٤۲ ،
۲۳٤ ديم .
۱۰ـ دافغانستا ن جغرا فيا يي‌قاموس . د آريا نا دايرة المعار ف

دټو لنى دخپرو نو څخه ، کابل ، ۱۳٤۷، ۸۷ ديم .
۱۱ـ رياض الاسلام ، indopersian Relation ٤ ديم .
۱۲ـ به لا هورى جا لي رو چدرا تا به ستج کرا هلگي انت .
ديستنگ بيت داکتر تا را چند۱۹۵۳مکميلن A short Aistory of india
۱٤۰ ديم نقشه .
۱۳ـ پټه خزانه ۲٦ ديم .
۱٤ـ اکبر آبادى ، مفتى‌انتظام‌الله ، تاريخ ملت، ندوة المصنفين،
دهلى ۱۹٦۷، ۸۳ ديم

۱۵ـ نعمت الله ، تاريخ خا ن
جهانى ومخز ن افغانى ، به سعى سيد محمد امام الدين ، ايشيا ټيک
سو سا ټيى پاکستان ۱۹٦۲،۷٤٤ديم .
۱٦ـ پټه خزانه، ۲٦ ديم .
۱۷ـ مرو چين گوا لي به بمبى‌جالي نيمگا که آ وهدا پر تگا ليانى
سودا گ ريى بنجا ات .
۱۸ـ مخزن افغانى ،۷٤٤ ديم.
۱۹ـ پټه خزانه ،۲٦ ديم .
۲۰ـ پټه خزانه ۲۹ ديم .

دکتور واحدی ترجمه سی

# عرفانی مقاملرده شیخ بستان نینگ احوالی

افسوس که شیخ بستان بریخ علیه الرحمه حقیده مفصل تاریخی سندلر گه ایگه ایمس میز . البته او نینگ باره سیده موجود بولگن مواد لر ، باز هم مغتنم حسابله نه دی .

پته خزانه کتابی نینگ مولفی وقتیمیز گه چه بیز گه یتیب کیلمه گن « بستان الاولیاء » نینگ اوشه وقتده موجود لیگی دن خبر بیره دی . پته خزانه ده کیلتیر یلگن و شیخ بستان نینگ بیر قطعه شعرینی هم اوز ایچیگه آلگن مواد ، نعمت الله هروی نینگ مخزن افغانی نا ملی کتابیده گی سطرلر ، و تاریخ مرصع ده کیلتیر یلگن نیرسه لر ، کوپ اهمیت گه ایگه . بو مواد لر نینگ برچه سینی جمع لب اور گه نیشبی، شیخ بستان نینگ قلبی ده گی معنوی سیوگی و عشق نینگ شور و حرارتینی معلوم قیله دی .
بو موضوع ، بیر سوراقنی ایجاب قیله دی . سوال بو که آیا حق تعالی مهری نینگ نوری ، شیخ بستانتی بیخود و مست لیک حالتگه یتیشتیر گن می ایدی ، یا بی جیریم لیک و آرام لیک مقامیگه یتکزگن می ایدی ؟

پته خزانه ده کیلتیر یلگن بیر پارچه شعردن وشو کتابده

کیلگن بشقه مواد د ن معلو م بوله‌دی که شیخ بستا ن ، شور ید ه حا ل بیر صو فی ایکن . مخز ن‌افغا نی ده کیلتیر یلگن سطر لردن، شیخ بستا ن شور ید ه حا ل لیك‌مرحله سید ه تو خته ب قالمه گن لیگی ، ونتیجه ده او کیشی گـــه‌روحا نی بی جیریم لیك و آرا م‌لیك میسر بو لگه نی پیقه له د ی .شیخ‌بستا ن نینگ شو ایکی خیـــل احوا لیگه آشنا بۇ لیشیمیز نـــی،اونی یخشی تا نیش او چـــون ، فاید ه لی دیب اویلا یمیز :

## شیخ بستا ن نینگ شور ید ه‌حال لیگی :

مخزن افغا نی کتا بی نینگـــ‌مولفی ، اونی « سو ختهٔ نارا لله » یعنی الله (ج) عشقی نینگ الاویگه‌کویگن دیگه نی شو در ك نی بیره دی، که شیخ نینگ حا لی د ن ،مهر وعشق نینگ نتیجه سی بو لگن- شوق و قلق و عطشی مقا ملر ی‌نینگ نشا نه لری بیلیز ایدی .
کویگن لیك هم فنا و نیست لیـــك‌معنا سینی افا ده قیله دی . و فنا سلو ك نینگ سو نگگی منـــز ل‌لرید ن بیر ی حسابله نه د ی.شیخ بستا ن نینگ اوز ی هو نده ی‌دیگن:

د مینی اور د ی ز ما زړه ئـــی‌وریت په انگار کینا .
بنبی تار و نار کینا !
تر جمه :

عشقینینگ‌او تی‌یوره گیمنی کباب‌قیلدی. یخشی ناتوا ن قیلد ی وسیقد ی.
روانی احوا ل نقطهٔ نظر ید ن ،بو‌مطلب نینگ تصد یقی ، شیـــخ بستا ن نینگ‌اولو سی شعرطرزینی‌یعنی «بدله » نی اوزیگه و سیلـــه قیلیشی دور . «بدله » قد یم منشایی‌بولگن بیر نو ع شعر دو ر.اونینگ ریشه سینی حتی او ستا د ه‌واسلام‌دن آلد ینکی تیل لر نینگ شعـــر لرید ه تاپیش ممکن . بو نو ع‌شعر عرو ض حسابید ه ، مستزاد نوعی دور وآغزه کی دری تیلید ه‌هم بار .
مثلا کابل نینگ آغزه کی‌تیلیده:

مه‌که عاشقت شدم ، سیبه سرموار کدی ،
دلم او گار کدی !
جوان محبو به لر نینگ تیلیده«بدله» شو ق و هجرا ن نداسی دور . شیخ بستا ن نینگ‌بوطرز نی‌انتخا ب قیلیشی اونگه او ز ی‌نینگ کود ك لیك و یا شلیك دور لر ی‌محیطی بو لگن قند هار ، هلمند و شوراو ك نا حیه سی نینگ کوچلی تاثیرینی کورسه ته دی .

شیخ بستا ن نینگ بو تو ن‌تیریك لیك دور ید ه نا لـــــه چیکیشی و زار و ناله بیلن سرو داوقیشی ، او نینگ حا لت عطشی‌دن نشانه دور . بیر نیرسه نی‌قو لگه‌کیلتیریشس او چو ن ، یاش بد لــه نینگ آته ـآنه سیگه شو ناز پرورلیك ییللر د ه ، عذر و تولاقیلیشی آد می زاد گه شو ند ه ی تاثـــــیر بغیشله ید ی که التماس مقا مید ه تا کیکسه لیك و قرر ی لیك دورگچه‌ایسد ه قا له دی . شواحوالنی شیخ بستا ن شعر ی نینگ بر چه‌مصر ح لر ید ه و نعمت الله‌هرو ی نینگ گواه لیگی نقطهٔ نظر د ن‌هم‌بیلیشس ممکن .

خوا جه عبدا لله انصا ری هروی‌علیه الر حمه (۳۹۶ ـ ۴۸۱ هـ ق ) مناز ل السا یرین د ه شوق نینگ‌یو قار ی در جه سینی ،قوییده گی چه ترسیم قیلگن :

بنده خدای (ج) نینگ مقد س‌صفا تیگه کو نگو ل با غلیــد ی و اونینگ کر می نینگ معاینه سیگه‌ومهربا ن لیگی نینگ نشانه لریگه وفضلی نینگ علا متلر یگه مشتا ق‌بوله دی .
وبو شو قنی : مهربا ن لیـــك تسکین بیره دی .
وخو ش لیك آشو ب ییتکزه دی.
وصبر و شکیبا لیك او بیلـــن ستیزه قیله دی .

(مناز ل السا یرین ۱۵۷ نچــی بیت ، کابل نشر ی ۱۳۵۵ ش )
شیخ بستا ن نینگ شعر ید ن واونینگ سر گذ شتی د ن آلینگــن احوا ل منه شو. بواحوال نینگ‌ینه‌بیر نشانه سی ، آدم تما نیدن او ز

دلدار یگه خطا ب قیلینه دیگا نلهجه بیلن دلدار گه خطا ب قیلیشی‌دور. بوندن تعجب له نیشی کیره کایمس . چونکه روحانی عشق‌نی بیان قیلیشی ساحه سیده موندن بشقه چاره یوق. مجازی عشق دلسوخته لریگه متوجه قیلیشی اوچون ، دلدار گه شوتیل بیلن خطاب قیلیشی کیره‌ك . بیرکونی حقیقی عشق دلسوخته‌لیگی گه ایریشه دیگان لرهم شو دلسوخته لر دور.

بوشرط بیلن که خدای تعالی‌مهری نینگ توفیقی اولرگه دستگیر و راهنما بولسه . پس بو «بدله» ده او قیله دیگان ایستك « راسه گذر که پرما » ده گویا آدمی زاد معشوقنی تصور قیله میز . اما بو تصور ظاهری‌دور ، و عارف بو فکرنی اوزی نینگ کیین گی مصرع لرید مشرح قیله دی :

دخو زرو زرو له حال ته یی ای بلدار ه آگاه
یی د بی و زلو همراه

ترجمه :

ای خدا ! سین افکار لر یوره گی‌نینگ احوالیدن آگاه سن
سین بیچاره لرگه همراه‌سن بو ییرده حقیقی دلدار گه حقیقی خطاب قیلینه دی ، وعاشق،ظاهری بیان او ستیدن پرده‌نی کوتاره دی و دلدار نینگ معنوی مقامینی آشکار قیله دی .

شیخ بستان نینگ شوریده حال لیگی باره سیده بیلگن نیرسه میز منه شو . چونکه نعمت الله هروی اونی « صاحب درد » ایدی و کوزلری یاشدن هرگز قوریمس ایدی و دایم حزین آواز بیلن شعر اوقیردی‌دیب یازگن . بیز منه شو حالنی اونینگ شعر لرید ه او قییمیز .وبو حال ، الاوگه کوییشی ،و دایم ناله و زاری قیلیشی و تینچیمس لیك دور . اگر دقت قیلساك شونی انگلیمیز که‌بالاخره‌دلدار عاشق قه گذر قیله دی، نتیجه ده ، شوریده حال لیك دن‌سونگ‌آرام لیك پیدا بوله دی .

**شیخ بستا ن آرا م لیکمقامیده:**

شیخ بستا ن منصور دیك سکروشوریده لیك مقا میده اونچــــه قا لمه د ی. و مجذوب بو لمه ی ،فرزانه لیك حا لد ه قا لد ی . بو موضو عده هم « مخزن افغانی »مولفی نینگ قو لی سند دور.شیخ بستا ن باز رگا ن لیك کسبی گــه ایگه بو لیب ، آز گینه دستما یه بیلن کم گینه حلال و چه قو لگه کیلتیر ه ر اید ی . چو نکه حرا م لقمه ، صو فی نینگ کوز یگــــه قرانغی لیك پرده سینی تشلـــــه یدی . شیخ بستا ن هندوســتا ن نینگ بیر شهریده تور مس اید ی ، و«قدرت آثارینی » کوریشی اوچون هندوستا ن نینگ بیر شهرید ن باشقه بیر شهریگه سفر قیلرایدی، قدر ت آثار ینی کوریشی کلام الله شریف حکمی بیلن مو من نینگــــك وجیبه لرید ن بیری دور .

اوشبه ییل لرد ه ، هندو ستاند ه اقا مت قیلو و چی بشقه صو فیلر نینگ احوا لینی ایسد ه توتا یلیك:

خواجه لر طو یقتینی بنیاد ایتگن بهاء الد ین نقشبند (وفا ت ییلی : (۸۹۱ هق) خواجه عبدا لخا لـــق غجد وانــی ( و فــا ت ییلی : ٦١٧ ه ق) ارشاد ینی تکرار و تد کا رقیلر اید ی .

بو طریقت قو ییده گی سکیز اصل گه ایگه دور :

١ـ دم ده هو ش .

٢ـ قد م گه نظر .

٣ـ وطنده سفر .

٤ـ ایجمن د ه چلو ت .

٥ـ ایسلش ( یاد کرد ).

٦ـ قایتیش ( باز گشت ) .

٧ـ سقلش ( نگهدا شت ) .

٨ـ ایسد ه تو تیش ( یــــا دداشت ).

«قو ل ایشد ه و کو نگو ل یارده»بیانیده ، سالك تیلیدن ایشیتیلگن:

تشقر ید ن ، بازا ر ایچیده من

ایچد ن ، یار بیلن خلوتده مـــن

(قره‌نگ : میا فقیر الله جلال آباد ی «و فا ت ییلی :۱۱۹۵ هـ ق »
طریق الار شاد اثر ی نینگ ۹۷ نچی صفحه سیده گی صو فیلر احوا لی
باره سیده کی معلو ما ت )

شیخ بستا ن نینگ او ز ی نقشبند لیك طریقه سی پیرو ی بو-
لگن لیگی حقید ه هیچ بیر سندیوق. لیکن او نینگ سلو کی ، یعنی
اونده ه کسب . تیر یك چیلیك وسیله سی بو لگنی و باز رگا ن
لیك یو لید ن ، حلال لقمه نی قولگه کیلتیر یشی ، او نینگ رفتـار و
شما یلینی خوا جه لر اهل طریقتی دیك قیلیب کورسه ته دی .
بیر کیچه و کو ندو ز د ه او ن بیشس پار ه قرآ ن شریفنی تلاو ت
قیلیشس ، قر آن مجید نی یا تو له یاد قیلیب  ویا تقریبا یاد قیلیب
آلگن کیشی گه بیشس سا عت وقتنی ایجا ب قیله دی . تیر یك
لیك ده گی بو نظم و تر تیب شونی ثابت قیله دی که شیخ بستا ن ،
برچه اوشبو یبغی سیغی سی بیلن پرورد گا ر نینگ عشقی یو لیده ،
قلند ر و ملنگ و ملا متی نو عی دن بولمه گن .

نعمت الله هرو ی کیچه وکوندو ز دینگیز سفر یده شیخ
بستان خد متید ه بو لگنی جالب توجه بیر واقعه دور . بو سفر
هندوستا ن نینگ بیر بندر ی د ن بشقه بیر بندر ی گیچه و بو هم بلکه
گجرا ت در یاسی بو ییده و اقع بولگن دور . شیخ بستا ن د ه آرام
لیك و «طما نینت » نشانه سینی قوییده گی احوا لد ه کوره میز :

کشتی طو فانگه اوچره ب غر ق بولما قچی بو لد ی . کیمه نینگ
بر چه مسافر لر ی فر یاد و ناله قیلر اید یلر . شیخ بستان تینچ
وآرا م ایدی .

نعمت الله شیخ بستا ننی بو آرام لیکده کور یب تعجب لندی .
بالا خره کیمه قیر غا ققه ییتد ی وغرق بو لمه د ی . نعمت الله شیخ
نینگ کرا متیگه کو پرا ق اعتقا د باغله دی .

حقیقت بو که : شیخ بستا نحرکونی بیر نیچه رکو عده کلام الله نی او قیر ایدی . کیمه نشین لر، غرق‌بو لیشس و هلا کت وقتیده قنده ی ناله و فریاد چیکه دیلر وعافیت تیر غا غیگه ایر یشکنده، خدای تعالی نی ایسدن چیقار ه‌دیلر واو نینگ ذکر یدن غافل بو له دیلر. او شه وقتده ، شیخ بستا ن بیر لحظه هم خدا نینگ ذکر یدن غافل بو لمس لیك او چون دایم ناله و زاری قیلگن ، وسا حل ده حافظ شیرازی اولر نینگ نا دان‌لیگیدن شکا یت قیلگن ، سا حل نینگ سبکسا ر لری قطا ر یده بو لمه گن لیگینی ایستهگن .

ایندی کیلدیك یقین لمحه سیگه ، یعنی اولیم وقتیگه . بو بیر ده ، کوزی بیغی گه ایگه بولگن بو صو فی نینگ رو حا نی آرا م لیگی کما لینی اعزاز لیمیز. او، سکر ده ایمس بلکه صحو ده ایدی . انفصا ل ده ایمس بلکه اتصا ل ده ایدی ، تلبیس ده ایمس بلکه تحقیق ده ایدی . تفر قه ده ایمس بلکه جمع ده ایدی .

مولا نا جلال الدین بلخی نینگ سوز ینی ایسله یلیك :

بروز مر گ چو تا بو ت من روان باشد
گمان مبر که مرا درد این جهان باشد
جنازه ام چو ببینی مگو : فرا ق فراق
مرا وصال و ملا قات ، آن ز مان باشد!

تر جمه :

مین اولگن کو ن اگر تابوتیمنی کو تارسه لر
میند ه بو دنیا نینگ درد ی بولگه نینی گمان قیلمه گین
جناز ه منی کورگن و قتد ه فراق فرا ق دیما گین
چونکه اوشه ز مان ، مین اوچون وصا ل و ملا قا ت و قتی دور !

نعمت الله هروی شو نده ی دیب یاز ه دی :

«شیخ ، گجرا ت نینگ احمد آبا دیگه یتیشدیلر . بیر کونی : منینگ و قتیم آخر گه یتیبدی .. مینی تجهیز و تکفین قیلر سن ه‌دیب مینگه آیتدیلر .

بو اولیم ۱۰۰۲ نچی هجری‌قمری‌ییل نینگ ربیع الثانی آیـی نینگ او ن بیر ینچی سید ه جمعه کونی‌واقع بولگن . قمر ی ییل حسا بی بیلن حا ضر گچه او واقعه د ن‌تورت یو ز ییل اوتگن . بو تاریخ میلا دی ییل حسابید ه ۱۵۹٤نچی‌ییل نینگ جنور ی آییگه تو غر ی کیله دی . یعنی هندوستا ند ه‌آب‌وهوا نینگ معتد ل و یا قیملی‌بولگن فصلی .

نتیجه :

شیخ بستا ن ، ریا ضت و زهدنینگ مقاملریـده حیا ت کیچیره ـ راید ی . ر غبت وشو ق احوا لی ، اونینگ شور ید ه حا ل لیگیگـــه سبب چی اید ی . شو نینگـــــک‌اوچو ن گریا ن کوز گه ایگه ایدی و اونگه گذر قیلیشس تمنا سید ه‌اوز «بادار » ی نینگ در گا هیگه ناله وزار ی قیلـر ایدی . «بـا دار» او نینگ ناله سینی ایشیتیب اونگه گذر قیلر اید ی . شو نینگـــــک‌اوچو ن « سکینة» حا لتی وطما ـ نبنت » مقا می شیخ گه نصیـــب بولد ی .

خوا جه عبدالله انصار ی منازل‌السا یر ین ده آیته دی :
سکینة ، بیرار بیرار و قت بو له‌دی .
طما نینت هر گز اوز ایگه سیدن‌زایل بو لمه یدی .

بیرینچی در جه :خدا نینگ‌ذکری‌بیلن کونگو ل نینگ طما نینتی‌دور. وبـو ، رجـا یوز ه سیـدن ، قـورقوو چی نینگ طما نینت تا پیشـی دور .

وحکمنی قبو ل قیلیشس یو ز ه‌سید ن ناشکیبا نینگ طما نینت تاپیشی دور .

# د شيخ بستان بړيڅ بدله

مخکې تر دې چې د شيخ بستان بړيڅ د پښتو د اولسي اشعارو په کاب کې ويل شوې بدله باندې دشکل او مضمون له پلوه څه ووايم ، غوره گڼم، چې لو مړی دا ښکاره شي چې پخپله «بدله» څه شی ده ؟ په لغوی لحاظ بدله څه ته وايي ؟ عام او خاص مفا هيم يې کوم دي ؟

**دبدلې لغوی مفهوم :**

کله چې په لغوی لحاظ د «بدلې» شننه کيږي ، سړی دې ته اړو ځي چې دلغا تو فر هنگو نه پسې وپلټي ،ماهم په دې نيا مت څو فر هنگه کتلي، اود بدلې معنی مې تری په لاندې تو گه را ايستلې ده :

مرحوم محمداعظم ايازي (۱۲۵۷ـ۱۳۳۵ ش) په خپل فر هنگ «د لس زره لغتونه» کې (ص ٦٨، پښتوټولنه) «بدله : غزل، ترانه» مرحوم محمدگل نوري ( ۱۳۵۲ ش مړ) په «پښتـــوقاموس» (ج ا ص ۸۳ ، ۱۳۳۰ ش کال چاپ ـ پښتو ټو لنه) کی : «بدله: ټپه ، مصر عه ، غزل، سندره». پر- دل خان خټك اومولوی محمد اسحاق په پښتو ژبه نومې فر هنگ (ج ۳ص ۱۱۸ ،۱۹۷۱ ع کال ، پښتو اکيډيمې پيښور) کې : «بدله : سندره ،مثنوی ،غزل ، بدل» پښتو ـ پښتو تشريحي قا موس (ج اص ۲۸۸ ، ۱۳۵۸ ش کال ـ پښتو ټو لنه ـ کابل) کی :

«بدله : سندره، لنډۍ ،ټپه ،غاړه» په پښتو ـ انگليسي قاموس (ص٦٠، ۱۳۵۸ ش پښتو ټولنه) کی : Sang, Carol, roundely : بدله

سر بیره پر لوړو فرهنگو نوچی پښتنو کښلی د مستشر قینوله
فرهنگو څخه په لاند ینیو فرهنگونو کې یې «بدلې» ته دا ډول معناوی
کښلی دی :

(۱) پرو فیسور بر نهارډ ډورن (۱۸۰۵ـ ۱۸۸۱ ع) په خپلی فرهنگ
"Aglossary in Afghan and English"
(ص ۴۱۵ ، طبع اول پترز بورگ۱۸۴۷ ع) کی :
Thens or words : بدله»

(۲) هنری والتر بیلیو په خپلفرهنگ "Adictionary of the Pakh Toor pukshto language"
(ص ۱۲ ، طبع لاهور) کی : melody, music tune : بدله»

(۳) استاد اسلا نوف (۱۹۷۷ ع مړ) په «پښتو ـ روسی قاموس»
(ص ۱۱۲ ، د ۱۹۶۶ ع کال دمسکوچاپ) کی : «بدله : سندره»

(۴) هانری جارج راورټی (۱۸۲۵ ۱۹۰۶ ع) په خپل پښتو ـ انگر یزی
فرهنگ (طبع هر تفر د ص ۹۳) کی کښلې دی :
Tunesor words thy singtomuscial notes, song, melody

په دی خصو ص د یادو نی وړ بله خبره داده ، چی نو موړی د مخه یاد
شوی بیلیو بیا په انگریزی ـ پښتو ډکشنری کی د « Ballad's » د
کلمی په مقابل کی دغه معناوی کښلی دی : «سندره، لنډی، چار بیته غزله
ټپه ، مسره، ستا ینه» (ص ۱۹۷ ) دغه ډول (تر برن S.S. Thorburn
چی په خپل کتاب (طبع لندن ۱۸۷۶ ع) Bannu or our Afghan frontitr

کی ځای ځای د Ballads نومونه کارولی چی مطلب یی تری
هماغه عام او لسی اشعا ردی، لکه د ۱۷۱ مخ په عنوان کی Ballads
د کلمی راوړل او یاد همدغه فصل په راوروسته برخو (ص ۲۲۴) کی د
Marwat Ballads تر عنوان لاندی چی کومی خبری شوی،

په هغو کی د پښتنو عا میانه او لسی اشعار او یا د مروتو کسرونه معرفی
شوی دی . ډگر من شیر محمد کریمی چی ددغه کتاب کو مه پښتو تر جمه
کړی ، هغه هم د Ballad's کلمه په بدله (بدلې) تر جمه کړی ده .

دغه رنگه جیمز ډار مستشر (۱۸۴۹ـ۱۸۹۴ع) په خپل مغتنم کتاب « د
پښتو نخوا، د شعر هارو بهار» (طبع پاریس ۱۸۸۸ ع) کی او لسی اشعارو
لکه چار بیتو او بدلو ته د Ballad's

سر لیك ور كړي ، (وگوریء ! ۲۶،۲۷، ۲۸ نومره شعرونه) او تقلیدي غزلي بې د Ghazal تر سرلیك لاندې راوړي دي (وگوریء! ۲۹، ۳۰، ۳۱، ۳۲ نو مره شعرونه) ماد مثال په پاره لوړ څو شعره وښوول كه نه وي په ټول كتاب كي نو مـــــوړي مستشرق او لســـــي خصو صــي اشعارد Ballad's تر سرلیك لاندې او تقلیدي يې د شعري فورم له ماهيت سره سم تر خپل ځانگړي سر لیك لاندې صنف بندي كړي دي . له لوړي څرگندونې څخه څرگند یږي چې دغوختیځ پو هانو زموږ او لسي بدلو (په عام مفهوم) ته د Ballad's نومونه كارولي ده .

د قا مو سو نو كښنو نكو د «بدلې» عام و خاص مفا هيم سره گډ راوړي دي ، او لو ستو نكي تري د بدلي په باب يوه عمومي مفكوره ا خيستلاى شي . خو ددي له پاره چي په عام وخاص خاص ډول د بدلي په مفهوم پوه شو ، نو بهتره بو لم چې لومړي په عام ډول او بيا په خاص ډول په بدله بحث وكړم :

**په عام ډول :**

د پښتو نخوا په زياترو سيموكي د بدلي عام مفهوم يو ډول افــــاده كيږي. د بلو چستان د سيمو پښتانه د كند هار ، هلمند ، زابل ، روز گان ، فراه ، هرات غور، باد غيس، غزني ، وردگ ، ميدان لوگر ، د كابل د شاو خوا سيمو ، كونړ ، لغمان او ننگرهار په ځينو سيمو او همدا راز د پښتنيا او لري پښتو نخوا په ځينو سيمو كي په عام ډول ټولي اولسي سندري لكه: لنډۍ ، سرو كى ، د بنادي بدلي ، چاربيتي ، نيمكۍ ، بدلې او نورو ... د بدلو مفهوم لري. په زيـــا تـــرو پښتني سيمو كي د ځينو ذوقي ښځو په باب دا مشهوره وي چي ! « پلاني ډيره ښه بد لز نه ده » او يادا چــي : « پلاني ښه بدلزن ، يا بد لي د ي » مقصد دا چې هغه سړي ياد غه ښځــه ډيري ښي سندري وايي او يا يي ډيري سندري زده دي . په دى اصطلاح كي د پښتو د اولسي ادب عمومي او خصو صي سندري (۱) دواړه راځي

---

(۱) عامي سندري لكه : لنډۍ ، سرو كى ، د بنادي بدلې ، داتڼ ناري غاړي ، كاكړي ، چغيان ، سلسلي ، بر غازي ، سو لي د هوتكو ناري ، سنځر خيلي ناري او نور... خاصي سندري لكه : كسرونه ، د نكلو نو ناري ، آزاد اولسي شعرونه ، بدلي ، چار بيتي ، لوبې ، نيمكۍ او داستانونه .

او په عام ډول ټولې سندرې تــرې مراد یږي، او په دغسې مواردو کې بدله د اولسي سند رو په کوم خاص صنف پورې اړه نه لري .

د پښتو په مدون ادب کې هم ځینو شاعرانو او ادیبانو په خپلو اشعارو او آثارو کې بدله په همدې عام مفهوم راوړې ده ، لکه لوی خان، خوشحال خان ختټ (۱۰۲۲ ـ ۱۱۰۰ هق) چې وېلې دي :

گل چې شگفته شي عند لیــب باندې ناري تا
نشته دی یو کښلی چــې پــرې ړبولم بدلې

یا دا چې :

چې په حسن په ښایست دې زوروري
د هغو وایې بدلې یا سندرې (۲)

یا :« که غزل، قصیده، نور شعر بې ربا به ، سر یندې وایه شې ځای لري ،اماکه بې بدلو خوك رباب سر ینده ووهي گونگ دی»(۳)

یا لکه حافظ نور محمد چې د بریښنا او خدی د کیسې (۱۲۰٤ هق تالیف) په سر یزه کې د خپل پلار محمد امین سر پریکړې د تالیــف «جگړه د محمود افغان او نیول د اصفهان» په تعریف کې وایي :
«دا کتاب په زهیو د پښتنو لـــه جهته د بد لو د قو مو قیمتي دی»(٤)

محقق العلماء عبدالحق خروټــي(۱۲۱۵ ـ۱۲۹۰ هق) په «یا قوت السیر » کې ویلي دي :

ماند ینو در یې و هلې
ښې بدلې دوی بللې (۵)

دغه راز «دخیبر ادب» په دغـــه عبارت کې :«دا بدلې پښتانه مجلسیان

---

(۲) د خو شحال مر غلرې ،دلوی استاد پوهاند حبیبي په سر یزه او تصحیح، ص ٤۲۹ ، طبع کند هار ،۱۳۱۷ ش.

(۳) د ستار نا مه ، د خو شحال ختټ ص ٥۱ د ۱۳٤٥ ش کال چاپ ـ کابل ـ پښتو ټو لنه .

(٤) تاریخي پلټنې، ص ۲۰ ، د ښاغلي حبیب الله رفیع مقاله، د۱۳٥٦ ش کال چاپ ، د ۱۳٥۷ ش کـــال خپرونه، کابل ـ پښتو ټو لنه.

(۵) یاقوت السیر(خطي) ۲۱۰مخ،دپوهاند دکتر جاوید مخطوطه .

یا پخپله شاعران در باب اومنگـــی سره په خاص ملی طرزونو وایی»(٦)
هم د «بدلی» کلمه په عام ډول د ټولو اولسی خصوصی اشعارو لکه :چاربیتی ،
بدلی لو بی، بگـتی او دا ستان او نورو مفهوم آفاده کوی .
ډیټی حیات محمد خان، خان بهادرچی د حیات افغانی په ځینو برخوکی
له پښتو او لسی سندرو (نارو ، ټپو) سره د «بدل» کلمه د عنوان په
تو گه راوړی ، دا هم د بدلی هغه عام مفهوم ښندی ،چی دی هم گرده اولسی
سندری «بدلی» گڼی ( طبـع لاهـور١٨٦٧ع ص٢٨١).
ځنگه چی لوړ پردی موضوع څه خبری شوی او دا زباته شوه چی
په اکثرو پښتنی سیمو کی دبدلی مفهوم عام دی او پر ټولو او لسی-
سندرو اطلا قیږی ، مگر ددی تـــر څنگه په ځینو نورو پښتنی سیمو،لکه د
پښتنیا ځینی غرنی برخی، د ننگرهار او لغمان ځینی برخی او د پښتنیـــا
سیمو سره په گا ونډ کی پر تـــو سرحدی پښتنو کی«سندره» «سندری»
د«بدله» «بدلی» ځای نیسی او ځنگه چی په د مخو یادو شوو سیمو کی
ټو لو او لسی اشعا رو ته په عام ډول «بدلی» وایی ، دغه ډول په دغـــو
سیمو کی د او لسی خصو صـــی او عمومی سندرو ټولو انواعو ته«سندره»
«سندری» ویل کیږی. په پښتو کتبی ادبیاتو کی یی هم په همدی مفهوم
مثالونه پیدا کیږی ، لکه دا عبارت:«چی سندره به یی بلله او تعر یف به
یی په سندره کی د جمال دحمزه دزوی د نرو ښځو کاوه ، او دا سندره به یی
ویله» (٧)
د حمید بابا په لاندی بیت کی هم«سندری » همدغه ډول عا مه معنی
ښندی ، لکه :

چی پرون پری غږ یدی سندری ډول
نن یی و یر دی په ژړاو په انبول

یالکه دا عظم الـــد یـــن (١٣٠٠ هحدود) لاندی بیت :

---

(٦) د خیبر ادب ، ص ٤٩. دمرادشینواری تالیف ، د ١٩٥٨ ع کال د
پیښور چاپ .
(٧) تاریخ مرصع،ص ٣٩٥ ـ٣٩٦دافضل خا نختک تالیف ، دا ستاد
دوست محمد خان کا مل مر حوم په تصحیح ، سریزه او تعلیقاتو یو نیو-
ستی بك ایجنسی، پیښور ،د١٩٧٤ع کال چاپ .

زړه مې بیا راته د غم وایــــې سندري .
رانه غواړي دا شنا د خو لــــــې خبرې
(بهار گلشن ص۲۲ طبع لاهور)

حاجي جمعه بارکزی (۱۲۵۹ هق مړ) ویلي دي :
د خپل شعر به یو بیت باندې ورنه کړم
ددې او سو شاعرانو پرسندرې (خطي دیوان)

همدا رنگه شیخ احمد خان (۱۲۰۰ هق حدود) د خپل یوه اولسي باړکي په پای کې (سندري) د ټولو اولسي شعرونو په مفهوم استعمال کړې دي په دې ډول :

زه احمد خان وایم خوږې مسرې سندرې
خاونده خدایه دا لعین کړې له ما لــرې
د شاعرانو که په ما راشـــــــې لښکرې
نه ترې ویرېږم که د باب کوی که غوزی
میر کی بلا دی د سند رو پــــه مسرو کی
د لیونو په شا نی گر ځم مدام غرو کــــــې
بل می باز گل دی چې مدام کړې چپاوو نه
په زړه مې اوړي د غمو نو انبا رو نه (۸)

## په خاص ډول :

دبدلی د عام مفهوم تر څنګه پــه ځینو پښتني سیمو کی «بدله» دځینو خاصو مفا ،هیمو له پاره هم داستعمال موارد لري ، لکه د پښتنیا د منګلو په سیمو کی ، هغو پښتنې نکلونو ته چې په شفا هي ډول زموږ په اولس کی موجود دی ، بدله ویل کیږي، د مثال په ډول دوی «دآدم خان درخانی» نکل ته د آدم خان بدله وا یي. زما په عقیده د م لانعمت الله نو ښاري (۱۲۷۵ هـ زو کړي) د ظریف خان سواتی دقصې په لاندې بیت کې زاغلی د «بدلی» کلمه همدغه مفهوم ښندی، لکه:
دا قصه وه مشهوره سا معانو

(۸) او لسي سندري ، ج ۲، دزلمی هیواد مل ټو لونه ، ناچاپ .

په بدلو به ویله شاه خیلانو (۹)

دغه لوړ بیت کې له یادې شوې بدلې څخه ما ځکه «داو لسی نکل» مفهوم وا خیست چې : د ظریف خان سواتی قصه هم دپښتنو د نورو نکلو نو په څیر په اولس کې شفاهي شکل لري ، او د نکل په توګه کې منظو مې ناري هم ورسره ملې دي . نو په دې بیت کې یې نعمت الله همد غې بڼې ته اشاره کړې ده .

سر بیره پر دې دپیښور په ځینو شاو خوا سیمو کې «بد له» د «داستان» په مفهوم هم استعمالیږي دحمید بابا ما شو ګګرې (۱۱٤۸ ه،ق ژوندی) دمشهور تر کیب بند په لاندې بیت کې هم «بدله» لوړه معنی لري ، لکه : ولې نه چوی له دې غمه زماد له .

چې دې واوریده دیار دتلو بدله (۱۰)

کوم داستان ته چې د صو به سرحد په سیمه کې «بدله» ویل کیږي ، هغه «اولسی داستان» دی، چې موږ یې دخپلو اولسي اشعارو په خصوصي سندرو کې دیوه جلا صنف په توګه څیړو ،او د اولسی سندرو په کتابو کې یې تعریف داسې راغلی دی : «داستان : هغه شعر دی، چې دمثنوي په شان ویل کیږي ، سر نه لري ، او دیوه بیت د دواړو مسر یو قافیه یې یو شان وي» (۱۱) د اولسي شعر دغه داستان ډیر اوږد نه وي او له ۳۰ نه تر ۸۰ بیتو پورې رسي ،اودخیبر ها خوا ځینې پښتانه،دغه داستان ته «بدله» وايي .

ددغو سیمو د پښتنو او لسي شاعرانو د اشعارو کو مې مجمو عې چې په دې نژدې کلونو کې له پیښوره خپرې شوې دي، په ځینو کې د غه ډول او لسی داستانو نو ته دعنوان په توګه «بدله» لیکل شوې ده (۱۲)

---

(۹) قصه ظریف خان سواتي ص ۳۱ د دهلي د خادم الاسلام مطبعې چاپ .

(۱۰) د حمید دیوان ص ۱۳۲، د ۱۲۷۸ هق کال د بمبئي چاپ .

(۱۱) پښتنې سندرې ج ۲ ص ۱۹۸ د ۱۳۳۵ ش کال چاپ، پښتو ټولنه، کابل .

(۱۲) د مثال له پاره وګورئ : داو بښکو پیا له نو مې کتاب کې دباميږ بدله .

خود هیرو لو نه ده چی د داستان‌دغه شعری قالب چی د مثنوی بڼه لری ، له هغو مثنو یاتو سره ، چی‌له پارسی یا عربی ادبه پښتو ته راغلی ، او په سل گو نو دینی،عشقی ، جنگی او قصصی کتابو نه یکی نظم‌شوی هیڅ اړه‌نه لری، بلکه‌زموږ دداستان شعر کالب که‌څه هم له مثنوی سره ور ته دی، خوبیاهم یو ملی وزن او د اولسی شعریو خاص لر غو نی شکل دی ، چی د وزنونو او بحرونو له پلوه لــه لرغونو آریایی ادبیاتو سره نښتون‌لری، نه له پارسی او عر بی ادبه راغلی کتابی مثنوی سره .

د پښتو د ادبی تاریخ په ځینـــوهغو کتا بو کی چی دلرو پښتنوله له خواپه پښتو او اردو ژبوکښل‌شوی هوری دغه اولسی داستان‌چی شعری سکښت یی د مثنوی په شان‌دی ـ او د قصصی کتابو مثنوی‌تولی دبدلی تر عنوان لاندی مطا لعه شوی،زه له دغه ټول کتابو څخه د لاندی آثارو نوم ا خلم :

(۱) په «اټك كی اسپار» نومـــی‌کتاب کی چی د «پښتو لوك گيت» په نامه کو مه مقاله‌د «ح‌ـصاحبزاده»په قلم کښل شوی ده ، د مقالی یو ځای راغلی دی (ترجمه):

« بدله : دا په پښتو ژبه کی ډیرقدیم صنف دی .او د بدلی مقبو لیت له دی څخه ښکاری چی د پښتو ټول‌ادبیات په بدله کی دی . بدله د مثنوی په مفهوم استعما لیږی . که‌څه هم ځینی خلك هر منظوم شی ته بدله وایی ، خو څنگه چی د بدلی له‌ظاهری صورته ښکاری له بدلی نه مطلب «بد له» ده او دا پـــــــه‌ظاهر کی د مثنوی دو هم نوم دی ، او هغه خلك‌چی له بدلی څخه له‌مثنوی پرته بل مفهوم ا خلی سراسر غلط وایی .

دغه صنف د پښتو درزمیه‌او بزمیه دواړه قسمه شاعری آئینه ده ، مذهبی کتابونه : لکه اسرار العارفین ،قصص الا نبیاء .ناولونه: یعنی : شهزاده ممتاز ، لیلی‌ومجنون‌آدم در خو، فتح خان وربیا، جلات، محبوبا، جنگنا می ، لکه :جنگنامه حسنین، جنگنا مه حضرت علی ، جنگنا مه ا میر حمزه ، ټول په دغه‌صنف کی دی» (۱۳)

---

(۱۳) اټك كی اسپار ص ۵۵۰ .

جالبه خو داده، چی دهمدغه«اتك کی اسپار» نو می کتاب په ۳۵٦ مخ کی چی دبدلی کوم تعریف راغلی‌هغه‌ډیر واقعیت ته نزدی او دبدلی عام‌و خاص مفا هیم دواړه چاپیروی، د مقالی محترم لیکوال کښلی دی :

«په قدیمه اصطلاح **بدله** سندری‌ته ویله کیده ، او په دی تر تیب د پښتو نظم‌هر صنف دبدلی ترچوکاټ‌لاندی راته . مگر په پیښور او خیبر ایجنسی کی بیا بدلی خصو صی‌معنی‌پیدا کړه او هغو دا ستانونو ته ویل کیده چی د محبت ذکر به پکی شوی‌وغالبا ځینی خلك په عام ډول مثنوی او د قصیدی په‌طرز مسلسلو نظمونوته هم بد‌له وایی » (مختصره او آزاده ترجمه ) (سر حد کی مو سیقی ،دسید انصار نا صری د هلوی‌تحقیقی مقاله).

(۲) «پښتو لوك گیت» نو مـــی‌کتاب کی دبدلی تر سر لیك لاندی کښل شوی دی.(ترجمه اولنډیز): «بد‌له ، د مثنوی مترادف شکل دی . دا دپښتو د اولسی سندرو مقبول ترین صنف دی . بحر یی یو وی،خو دقافیو د تکنیك له پلوه یي بیتونه‌سره بیله قافیه لری ، اوبالکل د مثنوی له طرز سره یو شی دی .دهر شعر (بیت) قافیه بیله ده. دهر بیت دواړی مسری ځانته ځانته‌خو یو شی قافیی لری ... داډیـــــر لرغونی فورم ، او دپښتو ژبی ډیرادبیات په‌دی صنف‌کی ویل‌شوی دی.
دبدلی لفظی مفهوم «بدله» ده ،اودا پر دی امر دلالت کوی چی **بدله** دمثنوی بل **بدل** نوم دی .

بدله سندری ته هم ویل کیږی ،او دا په خپله ددی امر ثبوت دی‌چی بدله په پښتو کی‌ډیر مقبول صنف‌دی.

په دی فورم کی ټولی تاریخی ،رومانی او انقلابی قصی بیان شوی دی. رزمیه‌اوبزمیه دواړه ډوله‌موضوعات په دغه صنف کی موندل کیږی، قصص الانبیاء ،لیلی و مجنون ، شیر ین و فر هاد ، له پارسی ژبی‌نه پښتو ته په دغه صنف کی‌منتقل‌شوی دی .

په پښتون قوم کی د آدم درخو،فتح خان رابیا او جلات محبوبامقبولی قصی هم په بدله کی لیکل شوی دی‌دامام‌ ٍ حسین جنگنامه ، دامیر حمزه جنگنامه او له دی نه علاوه د مقامی‌جنگونو د استانونه هم په بدله کی

نظم شوی دی » (۱٤) .

(۳) په «تاریخ ادبیات مسلمانان پاکستان و هند» کی یی هم «د»بدله» تر عنوان لاندی لیکلی دی(ترجمه):

«بدله د پښتو په اولسی سندروکی معروف صنف دی . بدله له مثنوی سره مما ثلت ښیی ، بحریی عمو ما یو ډول دی .

البته د قافیو تکنیك یی مختلف دی ، او د مثنوی په ډول د هر بیت قافیی یی سره بیلی بیلی دی ....په دی صنف تار یخی ، رو مانـی، انقلابی قصی نظم شوی دی ، په پښتوکی ټول رومانو نه او جنگنامی د بدلی په شعری چوکاټ کی پیدا کیږی» (۱۵).

(٤) په «پشتو شاعری» نو می کتاب کی چی د «بدله» تر سر لیك لاندی څه کښل شوی دی ، هغه(۱٦) په دی باب د «پښتو لوك گیت» نومی کتاب دکښنولندیز گڼل کیږی.خوځه‌چی ددغه کتاب په دی برخه زیات ښکاری دادی: «په بدله کی تاریخی واقعات، معجزات، افسانی ،عشقیه قصی ، جنگنا می او نور نظم شوی‌چی شمیر یی بی حسابه دی .. په بدله والو کی م لانعمت الله او احمدجان مر حوم ډیر مشهور دی .

له پخوا نیو بدل والو څخه دفیاض نو م په تذکرو کی مو ندل کیږی، او ده د بهرام او گلندامی قصه نظم کړی ده ، او دا کلی په کلی له ساز سره ویله کیږی د نوروپخوانیو بدلو مصنفین معلوم نه دی ...»

دلوړو یادو شوو څلورو سرو کتابو په اقتبا ساتو کی مشترك ټکی داوو، چی بدله د مثنوی بیل نوم دی،اودپښتو ادبیاتو ټوله یازیاته برخه په دغه صنف کی نظم شوی ده. دپښتودټولو دینی، عشقی اوجنگی قصصی کتابو شکلی سکښت د بدلی پـــه‌چوکاټ کی دی .

---

(۱٤) پښتولوك گیت، فارغ بخاری ص ٦۷ـ ٦۸ ، د ۱۹٦۱ ع کال د لاهور چاپ (دوهم چاپ)

(۱۵) تاریخ ادبیات مسلمانـــان پاکستان وهند ج ۱۳ ص ۳۸، پنجاب یو نیور ستی لاهور ۱۹۷۱ ع

(۱٦) پښتو شاعری، فارغ بخاری رضا همدانی ص ۳۲ـ۳۳، د ۱۹٦٦ ع کال دکراچی چاپ.

خود اتك کی اسپار نو می کتاب دمقالی لیکوال (ح- صاحبزاده) په مطلق ډول داهم زیاتوی ، هغه کسان چی له بدلې څخه له مثنوی پر ته بل مفهوم اخلی په غلطه روان دی . ددغه ښاغلی په ځواب کی ویل کیږی ، چی د پښتنو قاطع اکثریت په عام طور سره بدله د هر منظوم شی په مفهوم استعمالوی ، او په دی برخه کی چی ښاغلی صاحبزاده په کومه لار روان دی هغه تر کستان ته تللی ده .

او دا چی په دغو څلور واړو کتابو کی بدله له مثنوی سره یو شان ګڼل شوی او یایی (بدله) دمثنوی بل نوم ګڼلی دا محض د دوی له ذهنه یوه راوتلی مفکوره ده چی هیـــڅ ډول اولسی او علمی اساس نه لری .

دغو ښاغلی او لسی داستان چی شکل یی مثنوی ته ورته دی او د خیبر ها خواځینی پښتانه ورته بدله وایی له کتا بی مثنوی سره ګډ کړی دی . حال دا چی خبره داسی نه ده، اولسی داستان یو زوړ آریایی شعری فورم دی ، او کتابی مثنوی له عربی یا پارسی ادبه پښتو ا دب ته راغلی او له اتمی هجری پیړی(۱۷) نه راپدی خوا په دی پنځو شپږو سوو کالو کی په سل ګونو کتابونه په دی صنف کی نظم شوی ، چی د مثنوی دغـــه تقلیدی فورم زموږ داولسیِ د استان(بدله) له زوړ آریایی فورم سره له فور می تشا به پر ته د ګډون بل اساس نه لری ، او موږ نه شو کولای چی له مثنوی سره داولسی داستان(بدله) د فورمی ور ته والی له ا مله د مثنوی په ټولو کتا بو د بدلی حکم و کړو . مثنوی زموږ کتابی ادب دی، او اولسی داستان (بدله)زموږ اولسی ادب دغه دواړه ډوله ادبیات د شکل او مضمون له پلوه جلا خصو صیات لری او د اولسی ادب هر څیړونکی په دی پو هیږی چی زموږ اولسی ادبیات د مضمون له پلوه زموږ د اولس دقامی ژوند هینداره، او دشکل له پلوه هم زموږ د ژبی خاص ملی آهنګونه دی چی زوړ آریایی اساس لری، او کتابی مثنوی او نور دغه ډول ادبیات دشکل

---

(۱۷) په پښتو لیکلی ادب کـــی پخوانی لاس ته راغلی مثنوی داکبر زمینداوری (۷۵۰ هق حدود) ده (وګوریء ! پښتانه شعراء ج اص ٦٧ -٦٩، د لوی استاد پو هاند حبیبی تالیف، د ۱۳۲۰ ش کال چاپ -کابل پښتو ټولنه) .

او مضمون دواړو له پلوه دغه ډول خصو صيات نه لري .

دا چې موږ او لسي داستان له کتابي مثنوي سره يو ډول نه بولو. لو مړ نی آريا يې فورم او دوهم تقليدي شکل ګڼو، په دې خصو ص کې ځينې نور اسنا د هم له موږ سره شته ، چې هغه په دې دلالت کوي چې داولسي داستان (بدله) مثنوي له کتابي تقليدي مثنوي سره اړه نه لري، د اولسي داستان (بدله) مثنوي ډوله نظم په خير نوري سندري هم موږ په پښتو ادب کې لرو ، چې فورم يې مثنوي ته ور ته دی، د مثال په توګه سليمان ماکو سابزي په تذکرة الاولياء (٦١٢هق) کې د شيخ بيټني (٣٠٠ ه ق حدود) په برخه کې کښلي دي «: شيخ بيټني به ډير تر ډير داسې سندري لولولې او د کسې غره کې به ګرځيد په شپې :

| | |
|---|---|
| لويه خدايه لو يه خدا يه | ستا په مينه په هر ځا يه |
| غرو لاړ دې درناوی کې | ټوله ژوې په زاري کـې |
| دلته دې د غرو لمنـــې | زموږ کين دې دې پکې پلنې |
| داوګړي ډير کړي خدايه | لويه خدايه لويه خدايه » (١٨) |

دشکلي جوړ ښت له مخې دشيخ بيټني دغه مناجات هم د مثنوي په خير دی ، مګر د تذکرة الاولياء مولف يې سندره بو لې .

دغه ډول د کاکړ و غاړو فورمـ ـي جوړ ښت هم د مثنوي په ډول دی لکه دغه لاندې غاړي :

| | |
|---|---|
| کوټي خود به نړيدی | په تاکې څه نخري کيدی |
| بوري کښته سه له کټه | زلزله را له پر کو ټه |
| راکښته سه له ميزه | زلز له را له انګر يزه |
| بازار سو تختې تختې | ترلاندې پروتې پښتنې |
| زنزلي زړه سوی دی نسته | ځوانان مړه دي ږغ يې نسته |
| راکښته سه له بامه | ز لزله راله بې پا مه (١٩) |

---

(١٨) تذکرة الاولياء (خطی) ص ٢

(١٩) غاړي ص ٦٤، د پروفيسورسيال کاکړ ټو لو نه ، د ١٩٦٩ ع کال د کوټې چاپ .

دغه سندری چې دکاکړ یو ، او غاړو په نامه شهرت لري هم مثنوي ته ورته دي مګر هیڅا له مثنوي سره یو شان نه دي بللي او نه يې مثنوي ته غاړي ویلي دي .

او داهم دیوه اولسي داستان ـ چې ځینې پښتانه يې «بدله» بولي ـ څو بیتونه:

خان بابا د چکدري چې په سفر لاړ
له دنیا نه د حق لور ته برابر لاړ
ظریف خان لعل بیګ ترې پاتې ماشومان شوو
موري يې مخکې مړه وه دواړه یتیمان شوو




هم يې لوربې بې کو پاتې شوه یتیمه
پر یده به د ښمن ظالم غلیمه
ظریف خان غریب چې پاتې شو یوازې
تر بورانو په غریب وکړې ناسازي (۲۰)

دغه دري واړه لوړ ښوول شوي اولسي فور مه د مثنوي په ډول دي، چې لو مړی فورم د سندري دو هم فورم د غاړي او دریم فورم د داستان اویا په خاص ډول د بدلي په نامه یادیږي او زموږ په اولسي او ملي ادب کې قدیمي ریښې لري ، او سړی نه شي کولای چې يې له کتابي مثنوي سره یو شان وبولي اویا ټولو کتابي مثنویاتو ته د (بدلي) نوم ورکړي. په ځینو خاصو پښتني سیمو کې (بدله) مطلق داولسي نکل یا اولسي داستان په مفهوم استعمالیږي، او له مثنوي سره چې ، داد بې فنو نو په کتابو نو کې يې تعریف داسې راغلی ـ :« مثنوي که آنرا مزدوج نیز خوانند نوع اشعاري است که دروزن یکي اما هر بیت آن دارای قافیه مستقل باشد .چون هر بیت مستلزم دوقافیه یا هردو مصراع ابیات مقفی است آنرا مثنوي نا میده اندمنسوب به کلمه (مثنی) مراد ف (اثنین، اثنین) که به معنی «دوتا دوتا» یا (دوګاني) است ـ کلمه مزدوج نیز همان معنی را می بخشد.

عدهٔ ابیات مثنوي محدود نیست، وبدین سبب این نوع شعر را اکثر برای سا ختن تواریخ و قصص و افسانه های طو لاني بکار می برند

---

(۲۰) غم غلط ص ۱۸، دنور محمدنو ښار، دپېښور چاپ، ددغه داستان (بدله ) ټوله ۱۴۰ بیته ده .

که نظم آن در قصیده و برقافیتی معین متعذر باشد» (۲۱) یو شی نه بلل کیږي. کتابی مثنوی، لکه لیلیومجنون، یوسف زلیخا، اسرارالعار- فین، جنګنامې او نور دینی اوقصصیدمثنوی پهفورم کی ویلشوی کتابونه په پښتو ادب کی تر څلورو ، پنځو،شپږو سوو کالو قدیمه سابقه نه لري حال دا چی د پښتو پهاولسی ادبکی مثنوی ته ور ته یا مثنوی ډوله فور مونه ډیر زاړه او له زړو آریاییفور مونو سره نښتون او اړیکه لري.

ګران پرو فیسور محمد نواز خانطایر په خپل مهم اثر «روهی ادب» کی سره نه دی چی د کتابی مثنویاو دبدلی د مثنوی تر منځ دبیلتوند کرښی په را ایستو قایل دی ، خولهدی سره سره دا هم وایی : «شلمه عیسوی‌صدی‌کی‌مثنوی‌زموږ‌په‌عوامی‌کی‌دبدلی شکل اختیار کړی دی اود تقلیدی انداز پهځای یی هغه تخلیقیلاره ا ختیار کړی ده چی زموږ د فو لکلور یا عوامی ادب نور اصناف‌یکی زیږ یدل . هم په دی سبب د کتابی شاعری دا صنف په ټول ــه‌پښتو نخوا کی بی کچه زیات مقبول او دلعزیز دی ، خو په بدله کی د مثنوی علمی او فلسیفانه معیار قایم نه دی ساتلی شوی» (۲۲) د محترم‌پرو فیسور حضور ته باید عرض‌شی چی د دوی په اصطلاح د بدلی مثنوی‌دکتابی مثنوی په تقلید نه ده ویل شوی ، اویا داچی مثنوی زموږ د بدلی په رنګ کی نه ده ظاهره شوی، بلکه زموږ مثنوی ډوله اولسی داستان (بدله) ترکتابی مثنوی‌وړاندی او په شلمه‌پیړی کی‌نه ده، پیداشوی‌بلکه دغه داوړه ډول ــه مثنوی سره بیلی دی .

په پیښور یو پښتنو لیکوالو کی‌پوازی عبدالحلیم اثر افغان ــــــی دی موضوع تهمتو جهشوی ، اوپر(بدلی)یی لکه داتك کی اسپار د مقالی د لیکوال اویانورو ښاغلو په څیر د مثنوی حکم نه دی کړی بلکه بیلابیلی معناوی یی ور کښلی دی ، دی کاږی«ځینی پښتنانه لنډی ته بدله وایی. هسی خو د بدله نوم په پښتنو کی‌مشهور دی ، او په عام طور سره استعما لیږی ، ولی د استعمال پ ــه‌محل او مو قع کی یی فرق دی :

---

(۲۱) صناعات ادبی ص ۲۱۷ ، دجلال همایی تالیف د ۱۳۸۰ هق کال دتهران چاپ .

(۲۲) روهی ادب ج ۱ ص ۸۵ د ۱۹۷۸ ع کال د پیښور چاپ .

(الف) د قند هار او خواوشـــا پښتانه وايي، چې بدله لکه د لنډۍ او غزل په شان د يوه خاص قسم، شعرونو نوم نه دی بلکه يو عام لفظ دی ، چې په ټولو قسمو نو يې اطلاق کيږي. د پښتو ژبې ملي شعر ونه که غزل دی ، هغه هم بد له له ده اوکه چاربيته ده هغې ته هم بدله ويلی شو او داسې واخله نور قسمو نه . ليکن دا يو خصو صيت لري ، چې بدلې صرف د ښځو آوازونو ته ويلی شي (۲۳) يعنې که يوځای ښځې لوبې وايي، لنډۍ وايي يا هر څه قســـم شعرونه وايي د هغوی په حقله به داسې ويلی شي :«په فلا نکې ځای کې ښځې (يالار تيني ، ماند يني، جونه، نجلې) بدلې وايي ».

اگر که هغوی هر قسم اشعار لنډۍ غزلي ياد پښتو څه بله نو عه او قسم اشعار وايي . يعنې د ښځو اوزانو ته مطلقا په غير د څه قيد نه بدلي ويلې شي د قند هار د خلقو په اصطلاح دنارينه وو آوازو نو ته بدلي نه شي ويلی ، يعنې داسې څوك نه وايــې فلانکې سړی بدلې وايي .

(ب) د جنوبې او مشر قی افغا نستان او ځينو نورو پښتنو پــــه اصطلاح کې د بدله اطلاق عام دی، دښځو اوزانو ته هم بد لی ويلی شي او دنارينه وو هغې تــه هــم. ددوی په اصطلاح کې دا دواړه محاوری موجودې دی. سړی بدلې وايي ښځې بدلې وايي :

(ج) د ځينو نورو پښتنو پـــه اصطلاح کې بدله په خصو صيــت سره هغه مسرې او ټپې دی ، چې دعاشق او معشوق په منځ کې دراز او نياز د اظهار او دسوال او جواب وربدلولو معنی گانې لري.. په وادی ښنا ور او په خواو شا علا قه کې دادريمه اصطلاح غوره گڼلې شي. په دی وجه مونږه بدله د لنډۍ هغه قسم مصرې گڼو چې د راز او نياز داظهار

لطيف او پر سوزه ا حساسات تاثرات يکې د دوو مينو تر منځه په طور د سوال او جواب بدل رابدل شوی وی» د ښاغلي اثر څرگند ونې په خپل ځای کې د مو ضوع لــــه روښانو لو سره مر سته کوی .خو څه چې دده په خبرو کې سمول غواړم دا دی چې : د کند هار په سيمو کې

---

(۲۳) استاد بينوا په ادبي فنون کې هم دغه ډول نظر يه وړاندې کړی دی (وگورىء ! ادبي فنون ص۶۷)

یوازی د ښځو آوازو ته بدلی نه ویلی کیږی ، بلکه د نرو سندرو ویلو ته هم «بدلی» و یل کیږی مثلا ز مـوږ کندهار یان وروښه وایی : (پلانی ښه بدلی (۲۱) دی »

سره له دی چی د پیښور د سیموځینی ښاغلی لیکوال او لسی داستان چی د مثنوی په ډول شعری کالب لری ، بدله بولی، او د همدی بدلی په استناد ټولو مثنو یاتو ته بدلـه‌وایی ، مگر د همدی سیمی د ځینو نورو شاعرانو آثارو ته په پاملرنه‌په‌دی سیمه کی یوازی اولسی داستان ته نه، بلکه ټولو وړو قصو ته ، چی‌په‌هر شعری فورم کی وی ، بدله ویل کیږی ، چی دغه اصطلاح بیا زموږدهغو نورو ښاغلو پیښور یو لیکوالو دا ادعا چی ـهر اولسی داستان بدله‌ده او اولسی داستان چی د مثنوی فورم لری نو بیا ځکه هره مثنوی هم‌بدله ده ـ پری ردیږی .

د مثال له پاره د سید اکبرصابرنو ښاری «دزړه سوی» نو می کتاب داشعارو په فور می ویش‌کی دبدلی‌موقعیت د یادونی وړدی . دغه کتاب ۹٦ مخه په ۱۹٦٤ ع کال دپیښورپه‌حمید یه پر یس کی چاپ شوی دی. په دی کتاب کی راغلی اشعار : د ثنا، مناجات، نعتونه، ترانی،رباعیات غزلی ، لوبی، مرثیی نظم، بـدلـی‌او چار بیتی تر سر لیکو نو لاندی خوندی شوی دی . په دی لړ کی دکتاب په ۷۹ مخ کی د «بدلی» سر لیک لیدل کیږی ، تر دی سر لیك لاندی‌په (۱) نو مره د پیر بابا دبالکې‌قصه او په (۲) نو مره دبلخ دیوامیر دزوی‌قصه خوندی ده .

لومړنی قصه (۷۹ـ ۸۳ مخونه)دغزلو په شعری قالب کی نظم شوی ده ، چی ټولی غزلی یې پنځه دی اودوهمه قصه یې (۸۳ ـ۸۹ مخونه)هم دقصیده‌و شمه‌اوږدو غزلوپه چوکاټ‌کی نظم کړی ، چی د پاړکو شمیریې دری دی .

له دی سنده خر گنده شوه،چی د هغو سیمو ځینی خلك یوازی ا و لســی د ا ستـا ن یـعنـی‌مثنوی ډو له نظم ، ته بدله نه وایی بلکه هری‌وړی قصی ته بدلی وایې ،نوچی د اسی و ی مـو ږ و لــی کتابې مثنوی او ددوی په اصطلاح اولسی بدله او لسې داستان یوشی وبو لو .

---

(۲۵) پښتو قاموس ج اص ۳۸

د بدلي د عامو او خاصو مفاهيمو ذکرګندو لو د لوړ اوږد بحث په نتيجه کې دومره ويل غواړم چې (بدله) په عام ډول ټولې اولسي سندرې را چا پيروي او په خاص ډول اولسي نکل او اولسي داستان ته ويل کيږي ، چې مفاهيم يې د سيمو په اساس فرق، کوي له همدغه ځايه ده چې په آريانا دايرة المعارف کې يې کښلي دي :

« بدله په پښتو کې مختلفي معناوې لري ، په قندهار او مربوطاتو کې يې هغو سندرونو ته بدله وايي چې د ښځو له خوا ويلې کيږي (؟) د پکتيا او ننګرهار په ولاياتو کې ټولو سندرو ته بدلې وايي (؟) يعنې ټولې هغه سندرې چې د ښځو او نارينه وو له خوا ويلې کيږي . پښتانه لنډۍ ته هم بدله وايي» (۲٦ )

## بدله د اولسي خصوصي سندرو د يوه ځانګړي فورم په توګه :

د پښتو په اولسي ادبياتو کې خصوصي سندرې يعنې هغه سندرې چې د اولسي شاعرانو له خوا جوړې شوي ، او شاعران يې معلوم دي، ځو ټاکلي نوعې لري، چې يوه نوعه يې بدلې دي . دغه بدلې د پښتو د اولسي ادبياتو په څيړنو کې ډيرو ښاغلو د اولسي غزل ، يا ملي غزل په نامه را معرفي کړي او يا يادې کړې دي (۲۷). د غو ښاغلو سره له دې چې دغه ډول اشعار له ديواني غزلو بېل کړي او د ملي غزل نوم يې ور کړی، خو په خپل اصلي «نامه» «بدلې» يې نه دي يادې کړې .

خو ځينې نور محترم او ښاغلي ليکوال چې د موضوع له مختلفو اړخونو سره آشنا دي ، دغې باريکۍ ته متوجه شوي ، او د پښتو د اولسي شاعرۍ دغه صنف يې د بدلو په نامه ياد کړی دی ، د دغو ليکوالو له جملې څخه استاد الفت مرحوم(۱۳۵٦ ش مړ) په «پښتو سندرې»

(۲٦) آريانا دايرة المعارف ج ٤ص ۳۷۸ ، د ۱۳٤٤ ش کال چاپ، د آريانا دايرة المعارف ټولنه ،کابل.

(۲۷) و ګوریء ! پښتنې سندرې ج۲ ص ۱۱۸ ، پښتو څيړنې (ص٤ طبع ۱۳۵٦، پښتو ټولنه)، پښتو غزل(ص ۳۸٦_ طبع_ ۱۹۷۹، پيښور ، پښتو اکيډيمي)، پښتو ادب ص۲٦٦

(۲۸) او محترم محقق ښاغلي رفیع په«خلکو سندری» (۲۹) کی دغه صنف
ملی غزل په واقعی او اصلی شکل د(بدلی) په نا مه راپیژندلی دی .

ښاغلی اثر سره له دی چی پــه(پښتو ادب) نومی کتاب کی دملی غزل
اصطلاح هم کار ولی ده ، خو له‌دی سره سره یی د «بدلی» د تشریح
په ترخ کی کښلی دی : « د ځینـــو نورو پښتنو ادیبانو په رای باندی
بدله لکه د پښتو ژبی د نورو ملـــی‌شعرونو ځان له یو جدا قسم دی ،او
دغزل او مستزاد نه څه لږ ډیر فرق‌لری» .

د ا دبیات سرحد د لو مړی ټوك‌مولف رضا همدانی (ص ۱٤۰ ـ ۱٤۱
طبع ۱۹۵۳ع) چی د شیخ بستـــان‌بړیڅ سوانح له پټی خزانی په اردو
ژبه تر جمه کړی ، او له بدلی سره‌یی اردو ترجمه هم مله ده . هوری‌یی
دشیخ د بدلی په باب کښلی دی :«بدله په پښتو کی دوینایومخصوص
صنف‌دی ، د ډیرسو ځند آهنګ‌په‌ملګر تیاویله کیږی ،د قافیی‌اوردیف
پابندی هم‌لری.خو هربندیی بیل بیل‌دی. دغه صنف موږ په اردو کی له
مستزاد سره تشبیه کولای شو.دغه‌رنګه په پښتو کی هغو نظمونو ته هم
بد له ویله کیږی چی په هغو کی کومه‌قصه بیان شوی وی . خو په قندهار
کی غز لی ته هم بدله وایی»

دو یلو وړ خبره خو دا ده ، چی‌نو موړی همدانی په پښتو لوك ګیت
نو می کتاب کی دبدلی له پاره یوسفسطه ډوله تفصیل ورکړ، او دلی
یی بیا بدله په خصوصی او لســی‌اشعارو کی یو صنف و ګاڼه ، چی
دغه خبره یی‌په خپل ځای‌کی کی‌سمه‌هم ده، مګر دده دغه دوی متضادی
نظر یی له هغه کور کورا تقلیـــده‌زیږیدلی ، چی د پښتو لوك ګیت په
بحث کی داټك کی اسپار له مقالی‌څخه اوپه دی ځای کی یی دلــوی
استاد پوهاند حبیبی ، دپټی خزانی‌له حواشیو څخه کړی دی. دی پخپله
په دی خصوص کی د هیـــــڅ ډول‌شخصی رایی‌تښتن نه دی .

---

(۲۸) پښتو سندری ص ۱۰٤ ،د۱۳۲۵ ش کال چاپ ـ پښتو ټولنه
کابل .

(۲۹) د خلکو سندری ص ۲٤۳،د۱۳٤۹ ش کال چاپ ـ تاریخ ټولنه
کابل .

د پښتو د ملی غزل (بدلی) او دیوانی غزل (تقلیدی) تر منځ فرق ښکاره او څر گند دی ، هغه غزلی‌چی د پارسی او عربی‌غزل د بحرونو او وزنونو په چوکاټ کی ویل شوی،او ددغو د ووژبو د ادبی تاثیراتو له امله پښتو ته راغلی دی ، د فورم‌او نورو شکلی خصو صیاتو له پلوه له «بدلی» یاد ځینو په اصطلاح« ملی‌غزل» سره ډیر او څرگند تو پیرونه لری ، لکه چی د تقلیدی او یا پـــه‌اصطلاح عروضی غزل په تعریف کی ویل کیږی :

«غزل در اصطلاح شعرای پارسی‌اشعاری است بر یك وزن وقافیت‌یا مطلع مصرع که حد معمول متوسط‌ما‌بین پنج بیت پا دوازه بیت باشدو گاهی بیشتر از آن تاحدود پانزده‌وشانزده بیت و به ندرت تانزده بیت نیز گفته اند، اما ازپنج بیت کمتر،چون سه چهار بیت باشد میتوان آنرا غزل ناتمام گفت و کمتر از سه‌بیت را به نام غزل نه شاید نامید.

کلمهٔ غزل در اصل لغت به معنی‌عشقبازی و حدیث عشق و عاشقی کردن است ، وچون این نوع شعربیشتر مشتمل بر سخنان عاشقانه است ، آنرا غزل نا میده اند، ولیکن‌در غزل سرایی حدیث مغاز له شرط نیست، بلکه ممکن است متضمـــن‌مضا مین اخلا قی ود قایق حکمت و معرفت باشد ...

فرق میان غزل با تغزل قصیده آنست که‌ابیات‌تغزل باید همه مربوط به یك موضوع و یك مطلب باشد،اما در غزل تنوع مطالب ممکن‌است، چنا نکه آنرا شرط غزل دانسته‌اند»(۳۱) .

اما د «بدلی» د تعریف او گـــوفور می خصو صیاتو په باب ویـــل کیږی :

---

(۳۰) فنون بلاغت ، ص ۱۲۴ ـ ۱۲۵ ، جلال الدین همایی ، طبع تهران ، ۱۳۵۴ ش .

دکتر محمد معین کښلـــی دی :«غزل: شعری مر کب از چند بیت (معمو لا بین ۷ تا۱۲ بیت) که وزن‌آن مساوی و مصراح اول بـــا آخر ابیات مقفی باشد. و مـــوضوع آن‌وصف معشوق ومی‌و مغازله است».
(فر هنگ معین ج ۲ ص ۲۴۱۲ ،طبع ۱۳۴۳ ، تهران).

«بدلی د پښتو د اولسی نظم اودخلکو د سندر و یوه اغیز ناکه، خوند وره او زړه وړونکی برخه ده.

بدلی په ډیره چستی‌او تندی‌سره‌ویلی کیږی، چی د آواز سستی اود آهنگ اوږد تیا نقصان پکی پیداکوی‌دبدلو مو ضوع غالباً مینه او محبت وی، او بدلی هرو مرو د مینی کلام‌یا په بل عبارت داسی کلام وی چی انسان په وجد اونشاط راولی، او په‌وجود کی یی هیجان اویو بی سازی ذوق پیدا کوی ... بدلی په خپل‌کورکی د مسر یو د شمیر او د مسریو داوږدوالی، لنډ والی او برابروالی‌اساس په ډیرو نورو بر خو ویشلی کیږی، د بدلو هربند اکثراً له دوومسریو نه زیات راځی، چی کله یی هر بند دری مسری، کله څلور مسری‌او کله لا زیاتی مسری هم لری چی څو مهم ډولونه یی په لاندی ډول‌ښوول کیږی:

(۱) هغه بدلی چی هر بند یی‌څلور لنډی او په یوه وزن مسری ولری، چی په هغو کی یی دری‌مسری‌په خپل کورکی متحد القافیه وی، او څلور مه مسری یی د کسر په قافیه‌وی.

(۲) هغه بدلی چی هر بند یی‌څلور مسری وی، لو مړی او دوهمه مسری یی‌لنډی په یوه قافیه‌اویوه وزن او قافیه دریمه مسری یی‌پنځه سیلابه په بیل وزن او بیله قافیه‌اوڅلورمه مسری یی‌څوارلس یاپنځلس سیلابه په بیل وزن او د کسر په‌قافیه وی.

(۳) هغه بدلی چی دالفاظو په‌تسلسل‌کی‌د ځنځیری چار بیتی غوندی وی چی ځینی خلک یی سپری‌بدلی هم بو لی، او هر بندیی څلور مسری ولری، په لاندی ډول:

لو مړی مسری په بیل وزن او بیله، قافیه، او دو همه مسری په په هماغه وزن او هماغه قافیه، دریمه‌مسری اوږ ده په بیل وزن او بیله قافیه او څلورمه مسری بیالنډه ددریمی مسری‌په‌قافیه اوبل‌وزن یاپه بل‌عبارت دکسرو دوهمه مسری‌دتکرار په ډول راوړله کیږی.

(٤) هغه بدلی چی هر بند یی‌څلور مسری ولری، دوی مسری‌یی په یوه قافیه او یو وزن، دوی نوری‌مسری یی په بله قافیه او هماغه وزن وی.

(٥) هغه بدلی چی هر بندیی دری مسری ولری ، لو مړی مسری یی
لنډی او په یوه وزن او یوه قافیه اودریمه مسری یی اوږده اود کسر په
قافیه وی .

(٦) هغه بدلی چی هر بندیی دری مسری ولری ، لو مړی مسری یی
اوږد او په بیل وزن، دوهمه مسری یی لنډه په هماغه قافیه او بیل وزن،
دریمه مسری یی بیا اوږده د لو مړی مسری په وزن او قافیه وی .

(٧) هغه بدلی چی هر بندیی څلور اوږدی مسری ولری ، لو مړی دری
مسری یی په یوه قافیه او یوه وزن او څلور مه مسری یی په همدی وزن
او دکسر په قافیه وی .

(٨) هغه بدلی چی هر بندیی دری اوږدی مسری ولری ، لو مړی دوی
مسری یی په یوه قافیه او یوه وزن او دریمه مسری یی په هماغه وزن
او دکسر په قافیه وی .

(٩) هغه بدلی چی هر بند یی څلور مسری ولری ، لو مړی دری
مسری یی لنډی په یوه قافیه او یوه وزن او څلور مه مسری یی اوږده
دکسر په قافیه او هماغه وزن وی .

(١٠) هغه بدلی چی هر بندیی اووه لنډی مسری و لری ، په دی ډول چی
لو مړی شپږ مسری په یوه وزن او یوه قافیه او اوومه مسری په همدی
وزن او د کسر په قافیه وی .

(١١) هغه بدلی چی هر بندیی اته لنډی او په یوه وزن مسری ولری. په
دی ډول د بند لومړی مسری په بیل وزن او بیله قافیه ، څلور مه مسری
ددوهمی مسری په وزن او قافیه ، پنځمه مسری دلو مړی اودریمی مسری
په وزن او قافیه شپږ مه مسری ددوهمی او څلور می په وزن اوقافیه
او اتمه مسری د کسرو د دوهمو مسریو په وزن او قافیه وی .

(١٢) هغه بدلی چی دوه کسرونه او هر بند یی څلور مسری ولری،
لو مړی مسری اوږده په بیل وزن او بیله قافیه، دو همه مسری لنډه په
هماغه قافیه او بیل وزن ، دریمه مسری اوږده د کسرو دلو مړیـــو

مسریو په وزن او قافیه او څلور مه‌مسری یې لنه‌ه د کسرو د دوهمو مسریو په وزن او قافیه وي.

(۱۳) هغه بدلي چې دوه کسرونه‌ولري د کسرو لو مړی مسری په‌یوه وزن او یوه قافیه او ددوهمه مسری‌یی په هماغه وزن او بیله قافیه وي ، او هر بندیې څلور برابری مسری‌ولری، لو مړی مسری یې په بیل‌وزن اوبیله قا فیه دو همه مسری‌په هماغه وزن‌او هماغه قافیه اودریمه مسری د کسر د لو مړیومسریو په‌وزن او قافیه او څلور مه مسری د کسرو د دوهمو مسریو په وزن اوقافیه وي .

(۱٤) هغه بدلي چې هر بندیې‌څلور مسری ولری . لو مړی مسری یې اوږده په بیله قافیه ، او په بیل‌وزن، دوهمه مسری یې لنه‌ه په هماغه قافیه او د کسر د دوهمې مسری په‌وزن، دریمه مسری اوږده ، د کسرد لو مړی مسری په قافیه او بیل وزن‌او څلور مه مسری یې لنه‌ه د کسر ددو همې مسری په قافیه او وزن‌وي،او دی ته سپره بدل هم ویله کیږي، چې‌د ځنځیری چاربیتی‌رنګ لری...»(۳۱) .

دبدلي لوړ انواع چې د پښتو داولسي ادب یوه محترم څیړونکی ښوولي ، په‌خپل‌ځای کې ارزښتمنې‌دی ،خو که‌چیری ټولي لاس ته‌راغلی بدلي پری پسې ښې و پلټل شي‌ښایي نور انواع یې هم وموندل شي، او دغه شمیره تر شلو ورسیږي.

د ملي‌بدلي ددغو ګڼوشکلي انواعوله ښوولو څخه زما غرض دادی چې ګرانو لو ستو نکو ته دازبا ته شي‌چې‌زموږ ملي بدلي له دیواني (تقلیدی) غزل سره هیڅ ډول نښتون نه لری.

هغه کسان چې د پښتو داولسي‌ادب بدل او غزل یو شی ګڼي هغوی زما په خیال پر بله روان دی. دغسې‌چې د دیواني ادب د غزلي او داولسي ادب د بدلي د یو شان بللو طرفداری‌نه‌کوم. همدا رنګه هغه ښاغلي چې‌د

---

(۳۱) د خلکو سندری ص ۲٤٤_۲۵۲ .

دیوانی ادب غزلی بدلی بولی ، د هغو پلوی هم نه یم. دغه دواړه سره بیل اصناف دی ، موږ باید دد یوانی ادب تقلیدی غزل په خپل ځای کی غزله اود اولسی ادب تخلیقی بدله په خپل ځای کی بدله وبولو او د دواړو د ګهون طر فدار ونه اوسو .

بدله د اولسی شاعری د یوه فورم په تو ګه په پښتو ادب کی لر غونی سابقه لری ، او زموږ د اولسی شاعری په ښیرازه بڼ کی له چاربیتی سره اوږه په اوږه او جو خته راغلی ده ، او د ځینو ښا غلو دا نظر چی وایی : «دغزل دپاره د بدلی استعمال هغه روایت دی ، چی ښاغلی حبیبی دخو شحال ختهك مرغلری کی شروع کړی دی» (۳۲).

دمنلو وړ نه دی اوپه هیڅ علمی اوژبنی او ا دبی سند اتکا نه لری، اودا ځکه چی :

۱ـ لوی استاد پو هاند حبیبی دخو شحال مر غلری د غز لو برخه د «غزلیات» تر سر لیك لاندی راوړی ده (۱مخ) او دعبدالقادر خان ختهك (۱۰۶۳ ـ ۱۱۲۵ هق) د دیوان دغزلو برخی ته یی «بدلی» کښلی دی (۲۹ مخ) البته داخبره هم په پښتنو که عامه ده ، چی غزله هم بدله وبولی ،لکه مرحوم استاد کا مل ( ۱۳۵۹ ش مړ) چی د خو شحال د کلیات طبع دوهم ۱۹۶۰ ع د ۲۶۱ مخ په حاشیه کی دیوانی تقلیدی غزله بدله بللی ده.

۲ـ دلوړی ا دعا خاوند دو مره سخت زوری اوپه خپل منطق مین دی چی د «بدلی» پـه باب له خپل د ذهنی مفهومه پرته بل هیڅ مفهوم او معنی نه منی ،او د نورو پښتنو تعبیر ونو او تاویلو نو ته پـه دی خصوص کی په هیڅ ارزښت قابل نه دی .

۳ـ دغه ښاغلی ته تر اوسه دانه ده معلو مه چی «بدله» له خپلو عامو او خاصو تعبیر اتو سر بیره ،په ا و لسی شـاعـری ،

---

(۳۲) پښتو مجله د ۱۹۶۷ ع کال د مارچ ګڼه ، د ۸ کال ۲ ګڼه ص ۳۳

دیوه صنف په تو گه مو جوده دهچی دغه صنف ځینو ښاغلو دملی غزل او اولسیغزل په نو مو همیادکړی دی ،اوله دیوانی غزل سره هر اړخیز توپیر لری. اوپښتانه داولسیشاعری دغه صنف د ځینو ښاغلوپه تعبیر ملی غزل نه بلکه بدله بولی .

۳ـ د اولسی شعر دیوه فورم پهتوګهدبدلی موجودیت زموږ پهاولسی شاعری کی قدیمه سابقه لری . په همدغه بڼه او نا مه یی لرغو نی ضبط هماغه دمر حوم محمد هوتك (۱۰۸٤هقزوکړی) دی، چی په پټه خزانه کی یی د (شیخ بستان بړیځ ص ۲۸ملاباز توخی ص ۵۲، محمد گــل مسعود ص ٦۰ ، بهادر خان ص٦٤، ملا محمد صدیق پوپلزی ص ٦٥،

ملا محمد حافظ بار کزی ص ۸٤،نصر الدین خان انړ ص ۸۵ سیدال خان ناصر ص ۹۲)اشعارو ته د بدلیسر لیکونه کښلی دی. کوم اشعار چی محمد هوتك بدلی بللی هغهاوسهم پښتانه بدلی بو لی، او د اولسی بدلو له ډولو هغو مشخصا تو سرهسمون لریچی داولسی ادب محققین یی دغه ډولاشعار و ته ناکی.

محمد هو تك په خپل ارزښتمنکتاب پټه خزانهکیډ «بدلی» (اولسی تخلیقی شعر) او غزلی (دیوانـــــی تقلیدی شعر) تر منځ فرق کړی دی. د(خوشحال ص ۳۵ رحمان بابا ص٤۷ ، شیخ محمد صالح ص ٤۹ علی سرور لودی ص ۵۱ ، شاه حسینهوتك ص ۵۷ یو نس ص ۵۸ عبداـ القادر خان ختك ص ٦۲، الله یاراپریدی ص ٦۸) اشعار و ته یی د (غزل) سرلیکو نه کښلی،اوهغهاشعارواقعا غز لی دی ، چی زموږ ادب کی دنورو ژبو د ادبیاتو په تقلید رواجشوی دی محمد هوتك غز لو ته بدلی او بدلو ته غزلی نه دی ویلی ، اودادده پهعمیق نظراو دقت اوپه موضوع کی په هراړ خیزور ود دلالت کوی.دغه ډول گډون د پټی خزانی له پیدا کیدو او تر لاسه کیدو دمخه واقعشوی دی .

له دی سر بیره د پیاء الد یـــن(۱۲۰۰ هق حدود) دیوی قصیدهوشمه غزلی په یوه بیت کی د (بدلی)یادونهپه پښتو ادب کی له پخوا نه د یوه صنف په توګه دبدلی په موجودیتدلالت کوی ، ده ویلی دی :

چی په قصر می نوم نهدی ظا هرکړی

ډیر شمېر میږم په اشعار و په بدلو(۳۳)

٤ـ د محمد هوتك د پټې خزانې تر پیدا کیدو او چاپ (لومړی ځل ۱۳۲۳ هش) او هم د خوشال د ،مرغلری تر چاپ د مخه زموږ پـــه مطبو عا تو کی (بدله) د اولسی شعردیوه فورم په تو گه پیژندل شوی، او دځینو په اصطلاح ملی غزل یی‌دبدلی په نامه راپیژندلی دی .

د مثال په توگه د پښتو مجلی د٤کال (۱۳۱۵ هش) ۸ گڼه د(پښتو ادبیات مقاله‌ص ۲۵)کې بدله.داولسی‌ادب‌دیوه صنف په‌توگه یاده‌شویده.

دغه رنگه دطلوع افغان د ۱۳۱۷ش کال په‌کالنی گڼه(۳٤)کی‌چی داستاد غلام جیلانی جلالی (۱٤۰۰ هق مړ)کومه رساله «دپښتو ځانتنی ادب او موسیقی» تر سر لیك لاندی چـــاپ‌شوی ، په هغې کی د پښتو د عمومی او خصو صی سندرو د معرفی پـــه‌ترڅ کی یو فورم د (سپری‌بدلی) تر سر لیك لاندی راغلی دی ، اوهغه‌بـدلـی پکـی مـعر فـی شوی

چی د پښتو د اولسی ادب ورو ستیو محققینودملی غزل،اولسی‌غزل او یا هم بدلی په نامه راپیژندلی‌دی.

د بلو چستان په سیمو کی پراته‌پښتانه د کند هار، هلمند، زابل ، فراه، غزنی، وردگ او شرقی سیموعام خلك سره بیره پر دی چی په عا مو مواردو کی ټو لو سندرو تـــه‌بدلی وایی ، له‌دی سر بیره د اولسی شاعرانو په‌اشعارو کی‌یو صنف دبدلی‌په نامه هم پیژنی چی هغه صنف له چار بیتی بگتنی ، لو بی ، داستان ، کسر او آزاد اولسی شعر نه بیل دی، او ځانله مشخصات او کړه وړه‌لری ، چی ما په همدی مقا له کی د مخه څه خبری پرو کړی .

د مثال په‌توگه صاحبزاده حمیدالله‌پښینی چی د(غرو څوکی) په‌نامه د اولسی اشعارو (خصو صی سندرو)کومه مجموعه په ۱۹۶۹ ع کال ۹۶ مخه نه کوټی چاپ او خپره کړی‌ده.د مجموعی ټول اشعار یی (بدلی)بللی دی ، د بلو چستان د سیمو ځینی پښتانه دغو بدلو ته صحرایی بدلی

---

(۳۳) ادبی ستوری ج۲ ص ۸.۱دښاغلی رفیع تالیف، د ۱۳۵۹ ش کال چاپ، د اطلا عاتو او کلتـــوروزارت .

(۳٤) طلوع افغان‌د ۱۳۱۷ ش‌کال‌کالنی گڼه ص ۱٦ .

(۳۵) وایی ، او ځینې یې غروالي(۳٦)هم ګڼي په ادبي اوژبنیو څیړنو کې
پښتنو محققینو له بویه چې په یوه‌موضوع یا مورد کې د قضاوت ملاك
خپلې سیمې‌یاکلي تعبیراوتفسیرونه‌ګڼي ، او په دغسې مواردو کې خپلې
فیصلې او قضاوت د ټولو پښتنـــې‌سیمو تعا بیرو ته په پا ملرنه‌وکړي.
موږ ولیدل چې همدغه (بدله) په‌عام مفهوم کو مه معنی لري ؟ په‌خاص
مفهوم څه شی ته ویل کیږي، اود اولسي ادب په خصو صي سندروکې
پښتانه کو مو اشعارو ته بدله وایی.که‌چیرې دبدلې په‌تفسیر،او یاد بدلې
دمعنی په باب قضاوت کې دغه ټول‌تعبیرونه او مفا هیم له پامه‌وغورځوو
او د خپلو کلیوالو په تعبیر بدله‌دا- ستان اوبیا په غلطه مثنوی و بولو،
او یا هم داچې داولسي شاعرۍ د خصو صي سندرو بدله غزل وګڼو،
او خپل قول‌او حکم ته‌ترجیح ورکړو‌نورو اقوالو ته په درنښت قایل نه
شو، دابه علمي روش نه بلکه یوه‌علمي تنګ نظري وي چې سیمه ییزه
صبغه به و لري . په دغسې مواردوکې د نورو پښتنو له پامه غورځول،
او په خپله سیمه او سیمه ییز‌تعبیر‌تکیه کول، د پښتو او پښتنوپه‌ګټه
عمل نه دی ، او له پښتو او پښتنوسره د دښمنۍ معنی لري .

## د شیخ بستان دبدلې شکل او مضمون

محمد هوتك ته دی خدای (ج) جنتونه ور کا، چې په خپل ډیـــر
قیمتي او ارزښتمن اثر (پټه‌خزانه) کې یې د پښتو د لر غونو ادبـــي
شهپارو تر څنګه د شیخ بستان بړیخ (رح) (۱۰۲ هق مړ) یوه‌بدله
هم دده د شرح حال تر څنګه د هغه‌د کلام دنمونې په توګه خوندی کړې
ده .
په شکلي لحاظ دغه بدله د هغه‌تعریف له خصو صیاتو سره سمه
ده ، چې داولسي ادب محقیقین یې‌دبدلو له پاره راوړي .
دغه بدله یو کسر لري ، په دی‌ډول :

---

(۳۵) وګورۍ ع !دغروڅو کې ص۱۸ .
(۳٦) پښتو او پښتانه‌په سهیلي‌پښتو نخوا کې ج ۲ ص ۲۰۵،د
پرو فیسور سیال کاکړ تـا لیف۱۹۸۱ ع کال د کوټې چاپ.

اوښکې مې څاڅې پر گریوان یووار نظر که پر ما
راسه گذر که پر ما

په دغه کسر کې لو مړی مسرۍ اوږده پنځلس سیلا به او دوهمه یې لنډه اووه سیلا به ده ، دواړې مسرۍ یو ډول قافیه لرې .

له کسره سر بیره بدله څلورنوربندونه لرې ، چې د هر بند په پای کې کسرور سره تکرار راځې ،او داهغه خصو صیت دی چې زموږ په زیاترو و اولسې بدلو کې لیدل کیږې او دبدلی کسر د هر بند په پای کې تکرار یږې .

دبدلې هر بند دوه بیتیز څلور مسریز دی ، چې د کسر له تکرار سره ټرې درې بیتیز (شپږ مسریز) بند جوړیږې . د هر بند د لو مړې بیت دوې مسرې یوه قافیه او ددوهم بیت دوې مسرې یې په بله قافیه‌دې. دهر بند د بیتو نو د مسریو جوړښت‌دکسر په څیر : لومړې مسرۍ اوږدې اودوهمې لنډې دی .

دلو مړی بند دواړې لو مړنــــــۍ مسرې څوارلس سیلابیزې،اودوهمې مسرې یې شپږ سیلا بیزې دی :

د مینې اوردې زما زړگې وریت به‌انگار کړې ع نا
ښې تارو نارکې ع نا
خو د به ویلیږم چې مې زړه‌پرتامفتون کې ع نا
ځان مې‌زبون کې ع نا
او ښکې مې څاڅې پر گریوان یووار نظر که پر ما
راسه گذر که پر ما

د دوهم، دریم او څلورم بندلومړې‌دوې مسرې پنځلس هجایې او ورو-ستې دوې مسرې یې اووه هجایې دی :

وکه نظر زما پر حال جې پروت‌رنځوریمه تل
په ویر ناسور یمه تل
له زړه مې څاڅې وینې سور په‌وینو خپل یمه تل
په اور جلبل یمه‌تل
او ښکې مې څاڅې پر گریوان یووار نظر که پر ما
راسه گذر که پر ما

له درده سوزه تل ناری او غلبلی‌و همه
کړزی سوری وهمه
یوان می چیری نه آرام نه تیکاونه‌ونیم
نه راحت کړ نه وینم
اوښکی مې خاځی پر ګریوان یووار نظر که پر ما
راسه ګذر که پر ما
د خوږو زړونو له حال ته یی ای باداره آګاه
یی د بیوزلو همراه
د خپل عزت په روی بستان ته‌کړه‌دمهر ښندل
کړی‌له‌ګناهه‌ګوابښ
اوښکی مې خاځی پر ګریوان یووار نظر که پر ما
راسه ګذر که پر ما

په دی بدله کی یوازی د لو مړی‌بند د لومړ نیو او دوهمو مسریویوه یوه هجادبدلی دکسر اونورو بندونوله مسریو لږه ده ، د بدلی د نورو بندونو مسری په هجایی لحاظ دکسرله اوږدی او لنډی مسری سره برابری دی ، د لو مړی بند دمسریودیوی هجاد کمبوت په باب دا و یل غواړم چی ښایی دغه کمبوت دلهجوی‌اختلاف له ا مله زما له نا سمه‌لوسته او دهجا وو له نه ادا کولو پیښ‌وی،او یا به همدا ډول کمبوت واقع‌وی. دپښتو د اولسی شاعری د خصوصی‌سندرو د نورو بدلو په بندونو کی هم دغه ډول سیلابی ګډوډی، کمبوت‌اوزیاتوب او یا خزم و خرم (۳۷) پیښ وی .

---

(۳۷) خزم : د عر بی عروضو په‌اصطلاح تر ټاکلی وزن یو یادوه‌توری یاتر هغه زیات توری چی د دور په‌سرکی زیات راشی . هغه ته خـزم وایی . خزم په آریا یی ژبو کی کله‌کله په حشوه کی هم واقع کیږی .
خرم : د عر بی عروضو په‌اصطلاح‌درکن داول توری غورزید لو ته خرم ویل کیږی، او په کوم رکن یابحر کی‌چی خرم واقع شی هغه بحر اورکن ته اخرم یا مخروم ویل کیږی ( دتفصیل له پاره وګوری ! دوږمی مجلی د ۱۳٤۷ ش کال په دوو ګڼوکی د خزم او خرم په باب دفاضل استاد پو هاند رشاد مفصلی مقالی.)

د مضمون په لحاظ دغه بدله یوه‌مسلکی عر فانی بدله ده ، چی شیخ
بستان بړیځ له خپله حاله سره سمه‌ویلې ده . شیخ د لوی خدای (ج) په
مینه مست صو فی او دقال اوحال‌خاوند وو، او دغه بدله هم دده د
اورنی الهی مینی ښکار ندویی کوی،او دده سیرت تری موږ ته دخدای
(ج) پرجمال دیوه مین عارف په‌توگه‌راخر گند یږی . او هغه څه چــی
نعمت الله هروی د ۱۰۲۰ هق پــه‌حدودو کی د ده د عر فا نــــی او
تصوفی مراتبو په باب کــښلی دده‌دغی بدلی له مطا لبو او مضمون
سره پو ره اړخ لگوی .
د شیخ بدله زموږ په اولسی ادب‌کی دعر فانی سندرو ډیره لرغونې
نمونه ده او په لر غو نوالی ورته‌له دی جهته قایل یو ، چی داولسی
ادب د خصو صی سندرو دبدلې په‌صنف کی تردی د مخنې بدله زموږ
په واك کی نشته. که نه وی د شیخ‌متی(۶۲۲ـ ۶۸۷هق) او شیخ تیمن
کاکړ (۵۵۰ هق حدود) عارفانه اوله وجد وجذب وحال‌نه ډکی سندری
چی هغه هم زموږ د شاعری پــــه‌اولسی اوزانو کی ویل شوی ،تردغی
بدلې ډیری د مخنی دی .
موږ په خپله او لسی شا عری‌کی‌عر فانی بدلی ډیری لږ لرو، ځکه
زموږ عرفا وو زیاترو دغزل، قصیدی‌او مثنوی په شعری قالبو نو کـــی
ویناوی کړی دی ، او د شیخ بستان‌علیه الرحمه دغه بدله زموږ دعرفانی
بدلو په سر یزه کی دریږی .

### دشیخ بستان بړیځ دبدلی ادبی‌ارزښت

دا چی وایی : « ادبی اثر یوازی‌په‌هغه صورت کی‌په‌سمه تو گه‌ارزیابی
کیدلی شی چی د چاپیر یال او کلتورپه غیږ ه کی مطا لعه شی ، او د
یوی ځانگړی او مجر دی پدیدی په‌نظر ور ته ونه کتل شی . هر ادبی
اثرد پیچلو ټو لنیزو او کلتوری‌عواملومحصول دی » (۳۸) د ادبی آثارو د
څیړنی او ارزښت د ځر گند ونی په‌برخه پر ځای خبره ده ، او دکره‌کتنی
په اصو لو کی د یوه عمده اصل په‌تو گه د څیړونکی او کره کتو نکی
قضاوت ملاك گر ځیدلی شی . ځکه‌که چیری‌د ټولنی‌د کلتوری اواجتماعی

---

(۳۸) د کره کتنی تاریخی پس منظر او معیارونه، د څیړ نــدوی
محمد صدیق روهی مقاله ،کابل مجله‌د ۱۳۵۹ کال ۷ـ۸ گڼه ۹ مخ .

ارزښتو نو ، او دادبي اثر دایجاددعصر خصو صیاتو ته په نه پاملرنه دیوه ادبي اثر مطا لعه وشي ، نو په‌قضاوت کې غوره نتیجه ترې نه تر لاسه کیږي ، او هغه څه چې دادبي‌اثر د ارزښتو نو په باب واقعیت‌لري نه ترې څر گندیږي .

موږ چې د شیخ بستان بړ یـڅ بدله د ادبي ارزښت له پلوه تر کتنې لاندې نیسو ، نو باید د شیخ دژوندد‌زمانې مسلط ادبي روابط اوضوابط، دشکل او مضمون له پلوه د هغـې‌زمانې د پښتو شا عري خصو صیات او بیا د شیخ فکري تمایلات هم له‌پامه ونه غورځوو .

په د مخنیو بحثونو کې مود شیخ‌دشعر شکل او مضمون وښوو او دا ښکاره شوه ، چې دغه بدله د شکل‌له پلوه‌او لسې شعر دی ،اود مضمون له پلوه ترې د عرفان او تصوف وږم‌تر سوږ مو کیږي .

اوس باید دا خبره وکړو چې دغه‌بدله د خپل عصر د ادبي تقاضـــو ښکار ندو یه ده او که یه ؟

زموږ د ژبې د لاس ته راغلو ماثرومطالعه را ښکاروي ، چې د دریمې، څلور مې او پنځمې پیړې په حدودوکې دنورو ژبو ادبي تاثیرات زموږ‌پر ادبیاتو لو یدلي ، او د همدغو اثراتو‌ترا اغیز لاندې قصیدې ، غــــز لې او توتې له نورو کړو وړو سره زموږ‌په ادب کې رایجې شوې دي .

خو له دغو ادبي اثراتو د مخــه‌زموږ د ژبې شاعري په داسې اولسي او ملي او زانو او بحرونو کې شوې‌چې ددې ژبې خپل ما ل‌دی، او ددې ډول شاعري ریښه ی‌ل ه‌زړو آریایي ادبیاتو سره ارتباط لري .

پښتو ژبې د تقلیدي دیواني ادب‌تر څنگه له ډیری لرغونې زمانې څخه خپل دغه اولسي ادب هم پاللی، او‌تراوسه هم زموږ کلیوال شاعران په همدغو زړو ملي قالبو او چوکاټونوکې شعر وایي .

د شیخ په عصر کې د تقلیـــدي‌شاعري تر څنگه په کلیو اوبانډو کې دپښتو په ملي اوزانو اشعار او ترانې‌ویل کیدې .

او دې ډول شاعري په ټولو پښتنې‌سیمو کې پوره تسلط درلود. نو زموږ شاعر هم د خپلو ملي عنعناتو‌تراغیز لاندې په همدې ملي اوزانو شعر وایه ،او دا ډول شاعري د پښتو طبیعي شاعري ده اوشاعران‌یې

داسی خلك دی چی د پښتو ادبیاتو دستر نقاد فاضل استاد پوهاند رشاد په قول : «بی تکلفه یا طبیعی شاعر هغه څوك دی ، چی راسا د طبیعت نه الهام اخلی ، او له طبیعته متاثر کیږی ... بی تکلفه شاعر نیغ په نیغه له ژوند او کاینا تو څخه الهام اخلی ، او ورنه متاثر کیږی ، شعر جوړوی ، او نسبت وهغه بل شاعر ته چی د نورو تر تاثیر لاندی شعــر جوړوی ، طبیعی شاعر بلل کیږی.»

موږ د پښتو نخوا په غرو، رغو اودرو کی دغه له طبیعت، چاپیر یال او اجتماعی ژوندنه متاثر شاعران ډیرلرو، دوی د خپلی ژبی په دغو ملی اوزانو کی شعرونه وایی ، د نوروژبو د عروضو او بحورو تابع نه دی، او د مضوع په بیان او انتخاب کی هم عام و تا مه آزادی احساسوی.

دشیخ په شعر کی هم د پښتو د اولسی شاعری هغه طبیعی اثرات څرګند دی ، او خپل ذهنی اوروحی تاثرات یی پکی بی غلو غشه څرګند کړی دی .

د شیخ بستان بړیڅ د ژوند زمانه داسی مهال دی ، چی ـ لوی استاد پو هاند حبیبی په قول په پښتـوادب کی د تصوف چاشنی ګډه وه ،

او د عصر ل ه فر هنګی غو ښتنـوسره سم عرفانی افکارو د شاعرانو وینا وی تر خپل اغیز لاندی راوستی وی ، او دسیر او سلوك خبرو د شاعرانو او لیکوالو جونګړو او کوډلوتــه لاره پیدا کړی وه . په همدی اساس موږ د شیخ د شعر موضوعی څر نګوالی د هغه عصر د تقا ضو زیږ نده او د ده د حال تابع ګڼو. لنډه دا چی : د شیخ بستان شعر دادب هنر او ژبی د اصالت له پلوه زموږ دلرغونو ملی اشعارو په لړی کی د «بدلی» د صنف خورا ښخوانی ترلاسه شوی شعر دی چی هم یی ادبی ارزښت او هم یی هنری معیار لوړ دی او دشعر له معمول تعریف سره سم یی اوس هم ویل او لوستل پــرزړونو کار کوی ، او د حال تښتنان په وجد راولی او دالهی مینی او جمال وا صلا نو ته د بیلتون دویری ناورین ور په زړه کوی . نو په دی تو ګه ویلای شو چی دشیخ د شعر موضوعی ، ژبنی او فور می ځانګړ نی اوس هم د ژبی، هنر او ادب دنقادانو دپو ښتنو ځواب په بریالیتوب سره ور کولای شی .

Résumé de la communication qui sera présentée au Séminaire organisé à l'occasion du 400[e] anniversaire de la mort de Bostān Barēts.

# La signification géographique du Pəṭa Xazāna

par Daniel BALLAND
agrégé de l'Université
maître-assistant à l'Université de Paris IV
chargé de recherche au Centre National de la Recherche Scientifique

Le Pəṭa Xazāna est une oeuvre littéraire qui, par sa conception même, éclaire le passé de la nation paštun entre le VII[e] et le XII[e] siècles de l'Hégire (XIII[e] - XVIII[e] siècles après J.-C.). Cette question restant très obscure, il a semblé utile de faire la synthèse des données éparses qu'il renferme. D'un point de vue géographique, nous avons spécialement retenu les informations relatives à la localisation, aux mouvements et aux modes de vie des diverses tribus paštun mentionnées dans l'ouvrage. Au-delà, ces données posent le problème plus général de l'ethnogenèse paštun et leur confrontation avec la situation actuelle permet d'apprécier la dynamique de la société paštun.

Mission Scientifique en Afghanistan
Ambassade de France
Kaboul
Afghanistan

et

Université de Paris-Sorbonne
Institut de Géographie
191 rue Saint-Jacques
75005 Paris
France

Résumé de la communication qui sera présentée au Séminaire organisé à l'occasion du 400^e anniversaire de la mort de Bostān Barēṭs.

## Recherches sur la langue du Paṭa Xazāna

par Charles M. KIEFFER
Docteur ès Lettres
Maître de recherche au Centre National de la Recherche Scientifique, Paris

Le Paṭa Xazāna, publié pour la première fois en 1944, à Caboul, par le Prof. A. H. HABIBI, est l'un des documents les plus importants pour l'histoire des Paštun. Il a soulevé durant ces quarante dernières années des discussions passionnées et on est allé jusqu'à mettre en doute son authenticité. Il convient aujourd'hui de faire le point et de prendre position à propos de ces réserves, qui oblitèrent un document essentiel pour la nation paštun, ce qui est inadmissible puisqu'elles ne semblent pas fondées scientifiquement.

C'est dans cette optique que nous avons d'abord examiné la langue et le vocabulaire de ce texte. Nous pouvons dire que rien ne permet de supposer qu'il s'agisse d'un document forgé de toutes pièces. Bien au contraire il apparaît représenter l'état ultime d'un texte issu d'une longue lignée de copies, dont les aménagements, somme toute normaux quand il s'agit d'un manuscrit, ne dénotent que le traditionnel souci de rendre un texte immédiatement compréhensible. Ces "corrections de copistes" sont autant d'arguments en faveur de l'ancienneté de la tradition et l'état relativement "moderne" de la langue, loin de constituer une source de suspicion, plaide en faveur de son authenticité.

(C.N.R.S., E.R.A. 355, Paris)

2, rue de Steinbach
F - 68700 CERNAY - France

## Commentaire

Par sa forme et son style cette poésie de Bostân Baṛêts est typiquement un badə́la et appartient à la tradition du folklore paṣtō. D'après le Dr. Rawân Farhâdi (cf. sa contribution à cet ouvrage), le badə́la est un genre poétique d'origine ancienne qui rappelle la tradition poétique du moyen-iranien et même de l'Avesta.

Du point de vue de la dialectologie historique la langue du badə́la de Bostân Baṛêts est à rapprocher du paṣ̌tō kandahâri. Ce poème nous apporte le témoignage d'une situation linguistique vieille d'environ 400 ans. La langue de Bostân Baṛêts peut être comparée à celle de la prose et de la poésie de ses contemporains, de l'époque de la "Rôṣ̌âni", par exemple a celle du Khayr ol-Bayân de Bâyazid Rôṣ̌ân (931–980 de l'H.), du Dîwân d'Arzâni (mort en 1010 de l'H.) et du Makhzan d'Âkhond Darwēza (940–1048 de l'H.).

Ainsi cette poésie de Bostân Baṛêts ne révèle pas un état particulièrement ancien de la langue paṣ̌tō : sa langue n'est guère différente du parler en usage aujourd'hui à Ṣ̌êrâwak. On y trouve cependant quelques éléments relativement archaïques, par exemple le verbe gwaṣ̌əl que le Prof. A.H.Habibi traduit par "écarter"; ce mot, qui n'est plus en usage dans le paṣ̌tō kandahâri, survit cependant en paṣ̌tō nangrahâri avec deux acceptions : "prévenir" et "avoir l'intention". D'autre part le mot ṭikāwəna "repos, rétablissement", qui a complètement disparu de la langue moderne, ne manque pas de susciter l'intérêt du dialectologue.

Du point de vue de la structure grammaticale, morphologie et syntaxe, cette poésie ne révèle aucun trait ancien : la norme grammaticale était donc déjà fixée du temps de Bostân Baṛêts, à moins que les copistes n'aient peu à peu éliminé du Pəṭa Khazâna les traits archaïsants. Seule une étude systématique de l'ouvrage dans son entier pourra apporter une réponse à cette importante question. D'autres caractéristiques, comme la syllabe superfétatoire -nā, sont courantes dans la tradition poétique du folklore paṣ̌tō.

## b a d ə l a

Des larmes coulent goutte à goutte dans mon col,
Pour une fois accorde-moi un regard,
Viens et passe près de moi.
Le feu de mon amour pour toi a brûlé mon coeur,
Il m'a complètement épuisé et écrasé.
Puisque mon coeur est fasciné par toi, il faut que je parte,
Je me suis anéanti dans mon amour pour toi.
Des larmes coulent goutte à goutte dans mon col,
Pour une fois accorde-moi un regard,
Viens et passe près de moi.
Jette un regard sur moi, car je suis tombé dans la détresse,
Je suis emprisonné dans l'affliction et le deuil.
Mon coeur saigne et je suis teint du rouge de mon propre sang,
Je suis brûlé et consumé par le feu.
Des larmes coulent goutte à goutte dans mon col,
Pour une fois accorde-moi un regard,
Viens et passe près de moi.
Dans la douleur et la brûlure de l'amour je ne cesse de pleurer,
Je crie et me lamente.
Même pour un court instant nulle part je n'ai repos ni paix,
Je n'arrive plus à vivre.
Des larmes coulent goutte à goutte dans mon col,
Pour une fois accorde-moi un regard,
Viens et passe près de moi.
Ô Seigneur, Tu sais la condition des coeurs blessés
Et Tu es le compagnon des misérables.
Avec toute Ta gloire et Ton affection sois bon pour Bostân
Et tiens-le loin du péché.
Des larmes coulent goutte à goutte dans mon col,
Pour une fois accorde-moi un regard,
Viens et passe près de moi.

(Traduction Ch. M. Kieffer)

Séminaire organisé à l'occasion du 400^e^ anniversaire
de la mort de Šayx Bostān Barēts

---

Prof. Dr. M. A. Zyâr

Šayx Bostān Barēts, mort en 1002 de l'H., est cité dans le Pața Xazāna parmi les plus anciens poètes paštun du "Premier Trésor". Il est le contemporain de Bāyazid Ansāri, le fondateur de la Rošāniya. Avant le témoignage de Mohammad Hōtak, nous connaissions déjà Bostan Barets grâce au Maxzan-e Afghāni de Ne'āmatellāh Herawi, son ami. Ceci constitue aussi une preuve de l'authenticité du Pața Xazāna, qui, après sa première publication en 1944, a souvent souvent été mise en doute. ( Voir Dr. Ahmad Zyâr, in PAŞTO QUATERLY, Vol. I, No. 3, International Center for Pashto Studies, 1978).

Nous donnerons ici la traduction de la biographie de Bostān Barēts, rédigée par Mohammad Hōtak, la traduction d'une de ses poésies donnée à la suite de cette biographie, ainsi qu'un commentaire linguistique portant sur cette poésie.

Mon père a rapporté une tradition ancienne (à savoir) que Chaykh Bostân appartenait à la tribu Barêts. Il avait une maison à Chôrâwak (Šōrāwak). Son père, Mohammad Akram, Dieu le bénisse, était lui aussi un serviteur de Dieu. Venu de Chôrâwak, il avait élu résidence dans une hutte au bord du Helmand et se consacrait au culte de Dieu. On raconte que Chaykh Bostân tira sa richesse spirituelle de la présence de son père. Dans sa jeunesse il se rendit en Inde. Là il allait de ville en ville et observait avec ferveur les manifestations de la Puissance divine. Quand il revint au pays, en l'année 998 de l'Hégire, il écrivit sous l'inspiration des Saints de Dieu un livre intitulé "Bostân ol-Awlyâ'" ("Le Jardin des Saints", une biographie des Saints). Mon père, Dieu le bénisse, avait vu ce livre à Chôrâwak dans la maison de Hassan Khân (Hasan Xān) Barêts. Dans ce livre Chaykh Bostân, la Miséricorde soit sur lui, avait noté la biographie, les grands actes et les conduites paradoxales de beaucoup de Saints pachtunes (paštūn). Il y avait cité une part importante de poésies de divers écrivains et aussi de ses propres poésies. Moi-même j'ai entendu de la bouche de mon propre père la poésie suivante qui fait partie des poésies de Chaykh Bostân, Dieu le bénisse :

O sky do unto me as you wish,

But am I thy sole victim or do you distress others too?

You burnt my heart in the fire of separation,

Do as you please now thine's the upper hand.

If one inquire about the state of Hassan,

In what state is a tree in fall?

N O T E

Mulla Hassan belonged to the Saagzai tribe. He died at the age of sixty-eight in 1245 H. and was buried at Talukan, Kandahar. People still go to his shrine to visit. Though there is a time lapse of two centuries between Mulla Hassan and Shaikh Bustan, weeping and uneasiness in the state of qurb is a common quality between them, wrapped both in that song and this ode. And this is one of the advantages that links up Pashto literature with the literature of Oriental languages.

Reference

1- Nematullah, Makhzani Afghani, vol. 2, p. 743. In a manuscript copy this date is given as the 11th of the same month.

2- Ibid.

3- Mahmud Kashani, Misbahul Hidaya, p. 417

4- Misbah, p. 419

5- Tuhfatul Ahrar

6- In the manuscript copy of Pata Khazana (p. 28) the date of writing of Bustanul Aulia is given as the year 998 H. and it is related that in this year the Shaikh returned to his homeland. Before this statement the author says on page 26 that this book was written in 956 H. Since he had died in 1002 H. it is obvious that he would have returned to India before 998 H. In writing the figures for years the scribe has sometimes made mistakes. Here also the year 956 on page 26 would be the scribe's error. Perhaps the book was begun in 996 and finished in 998, and on this page a figure (9) may have been changed to (5) by mistake.

7- Nematullah, Makhzan, vol. 2, p. 744

8- Mohammad Hotak, Pata Khazana, p. 27

9- Complete Works of Sanayi, p. 17

10- Pashtana Shuara, vol. 2, p. 398

The riders of sorrow plundered my heart,

I await anxiously the message of Thy union.

If You'd cure my heart my Beloved,

The fire of separation has burnt my heart.

On the one it's my rival grumbling to me,

On the other it's my pride wild like an ass.

Parting rings to me the bell of sorrow,

Separation lies in wait for me with a dagger in hand.

I can neither escapr nor can I be patient,

The gate of the fate fortress is opened before me.

I've neither a friend nor an intimate in this world,

Separation is my mother parting my father.

There'd be none other like I in the world,

Living always on the blood of his heart.

Neither do I see anyone perplexed like myself in the world,

Nor is my state like the state of any other.

Blood and flesh are my food, tears my drink,

Fasting is the tree of my heart and these its fruit.

I am more restless than the mill of the skies,

For bearing so much grief alone.

People look at my outward appearance,

Who is it that looks at my inward state?

Who is there to long for my condition,

When people see me they say: is this also a human?

When one learns of my sorrow and pain,

He forthwith ceases to be my friend.

He won't associate with me if he were prudent,

Else he too would be miserable.

Tears of grief flow down my face in streams,

Only God knows the state of my inflicted heart.

No remedy of the physician would cure me,

It does me more harm than good.

kan, a village in the west of Kandahar. He was wellknown for such virtues or spiritual attainments and moods as "jazb" (engrossment), "shawq" (yearning), "zuhd" (renunciation or self-denial), and "wajd" (ecstasy) and was a disciple of Mia Noor Mohammad Dawi, the Akhund Sahib of Poti. He composed Pashto poems touching and full of pain. Similarly his Farsi (Persian) poetry arouses tender feelings in the hearer or reader.

Forty years ago I had written in the second volume of Pashtana Shuara as follows: In fact his verses are the charred pieces of a heart burnt by the fire of love which appear on paper in the form of words and have been made into a diwan... and one regards that he has wrapped his heart in the words of his poetry... (10)

Quatrains of Mullah Hassan full of pain have been left to us. When he flees to the deserts of separation and is unaware of what happens about him, he looks into the room of his heart and says:

Do not thou go to the desert,
Look into the room of thy heart;
'Tis impossible for sound hearts to cry,
The hearts afflicted weep and wail.

Mulla Hassan has also a poem on separation in Pashto which is a long ode, and of which I had seen and copied an incomplete copy at the end of a manuscript from Kandahar.

Like in Shaikh Bustan's song toleration of burning and love have been described in a simple but efficacious tone in this ode which constitutes one of the last links of the chain of such Pashto poems on separation and which from the viewpoint of feeling of pain and sorrow is similar to Shaikh Bustan's song. Below will be cited the extant couplets of this ode from a manuscript copy.

<u>Pashto Firaqnama</u>

Friend, Thy word is sharp as the point of jahak,(bush like reed)
My wounded heart in alignment with it.
Thy beautiful face is bright as the noon sun,
How fragrant are Thy tresses.
They on whose heart burns the fire of Thy love,
Are shunned even by Hell.

Most of the gnostics endure this state. Sanayi, God bless his soul, welcomes it in the following words:

How nice the day when in Thy love  
From our burning heart,  
In Thy path we sow gardens  
With tears from our eyes.

The state of this affliction of love and suffering that causes the gnostic to cry and wail ends in his seeking refuge in God's loving kindness which in Becil's words is "the ebullition of the spring of God's mercy from the rose garden to the assembly of intimates." And the consummation of his depth of feeling and ardor takes Sanayi also to this lofty hall of divine favor, as he says:

Thine kindness hath cured every pain,  
I seek the pain of Thy love far from all cures.  
'Tis Thine mercy that's needed what use weeping?  
'Tis Thine favor that's needed what use wailing?

Observe, Shaikh Bustan too turns to this lofty refuge of compassion at end of his cries from burning and concludes his song with these words:

Thou art aware of the condition of wounded hearts O Lord,  
Thou art the companion of the helpless.  
For the sake of Thine grace bestow Thine love on Bustan,  
Thou forgiveth the sinners.  
Tears pour down my shirtfront show me Thine grace once,  
Come my way Thou.

(from Pata Khazana)

In old Pashto literature there are many such poems on separation that resemble Shaikh Bustan's above song, for our culture is greatly influenced by the Oriental literature and gnosticism. Hence even though the poet may not have had any inkling of Irfan he imitated the gnostics. And the literature of Oriental languages is replete with such poems on separation (or firaqnamas).

<u>Mulla Hassan of Talukan, Kandahar</u>

Mulla Hassan, a gnostic full of pain and an accomplished guide of Tariqat and Sulook (Sufi Orders), lived two centuries after the time of Shaikh Bustan in Talu-

eyes, and he suffered a pain as intense as if the grief and hardships of the whole world were borne by his heart. He let out pianful sighs from the depths of his bloodied heart every moment and sometimes, while tears flowed from his eyes he composed and sang Pashto poems in such painful and heart-rending a voice that made the rocks cry.[7]

In the Oriental Islamic literature we see this burning and toleration of pain and the grief arising from the state of proximity in the verses of all God-loving gnostics. For example, Attar says:

> Everyday the sorrow of Thy love exposes me to danger,
>
> It brings forth a hundred happenings and a hundred disturbances.

Shaikh Taiman Kakar, an early Pashto poet, portrays this state of proximity, full of fear and grief, exactly in these words:

> My heart's sad for this grief,
>
> I cry and wail, what an intolerable sadness !
>
> The fallow is green for my tears,
>
> I grieve and moan for I labor under afflictions.[8]

The fact that Shaikh Bustan always shed tears from the pain and burning caused by love or sang Pashto poems in mournful tones denotes the state which sanayi also describes in these words:

> From the burning of heart eyes like jewel-cases,
>
> And from the fire of heart sighs like pearl strings.[9]

Shaikh Bustan himself portrays this state as follows:

> The fire of Your love burnt my heart,
>
> It rendered it thin and thread-like.
>
> I needs must waste away for giving my heart to You,
>
> For I made myself wretched.

The state of love and endurance of burning that Nematullah has described in his Dari prose has been depicted in a song by Shaikh Bustan as:

> Blood drips from my heart I'm smeared with my own blood,
>
> I burn in fire perpetually.
>
> I cry and wail from pain and burning,
>
> I wail and lament.

Most of the gnostics endure this state. Sanayi, may God bless him, welcomes in the following words:

In this state the loved, the lover, and love are all one and the same:

When there's no room for union there can't be any for separation
when union is irrelevant separation is doubly so. (3)

So qurb is such a state in which all carnal qualities of the ascetic disappear in the very region of union and togetherness, and ultimately proximity and absence vanish, and like distance proximity itself keeps the ascetic uneasy in protracted grief and burning. Zunnoon had therefore said "The torment susequent to proximity is more severe than that following remoteness." (4)

The reason for this perpetual grief and pain of sofism is that the sofi in the state of proximity dreads the grief of zawal (waning). He is therefore weak and in a state of burning and tolerating it. He cries and he wails, he melts and he burns. He is pale and indisposed. But it is not so in separation and remoteness. Here the ascetic is living in the hope of future union, as Jami says:

The pain of nearness is greater than remoteness,
My heart trembles from the awe of proximity.
There's all the dread of waning in proximity,
And nothing in remoteness but the hope of union.
The fire of fear chars the heart and soul,
And the candle of hope brightens the soul. (5)

The reason that some accomplished and fortunate sofis and gnostics always regard the state of proximity just as bitter as separation and weep is this same state of fear and dread and awe from whose grief of waning they are afraid and and say:

Tears pour down my shirtfront show me thine grace once,
Come my way thou.

Shaikh Bustan's book, Bustanul Awlia, which had been seen by Mohammad Hotak's father, and was written in 998 H. (6) is now lost. We therefore do not have full information about the life of Shaikh Bustan. But what his faithful disciple, Nematulla has written about him clearly indicates his state of proximity and mukhala'a and his burning in God's love. He says:

" He was afflicted and yearned for the face of his Loved. Tears never left his

# FIRAQNAMAS OF SHAIKH BUSTAN AND MULLA HASSAN

OR

# TWO LIKE POEMS OF PAIN AND HEARTBURNING

by

Professor A. H. Habibi

**TRANSLATED BY M.H. RAHIMI**

In the middle period of Pashto poetry when the flavoring of sofism had acquired a special affection and mellifluence in literature, we have some such poetical pieces which we can call affectionate, warm, and burning poetry, full of pain and poignant grief.

Among the Pashtun historians Nematullah Noorzai Herawi acquainted us for the first time in early 11th century H. with a Pashtun saintly poet, Shaikh Mohammad Bustan Barets, who lived and associated with Nematullah before 1018 H. They had journeyed together in a ship in southern India. In his work, Makhzani Afghani, Nematullah describes his (Shaikh Bustan's) life and marvels, and gives his death as having happened on Friday the 7th of Rabiu-thani, 1002 H. in Ahmad Abad of Gujrat. (1)

What place Shaikh Bustan had reached in Irfan (gnosticism) can be seen from Nematullah's description of him in his work, the Makhzan:

"The refuge of Irfan, burnt by the love-fire of God, the Homa (a fabulous bird of good omen) of the nest of seclusion, the phoenix of the mount ofisolation, the pearl from the sea of Oneness." (2)

According to Nematullah the Shaikh travelled in his youth from Roh to India, and lived among the Barets tribe of Samana pretending to be a businessman. But in fact, he ran a very small business with a limited capital, and what he gained he spent to help the needy and the wretched.

The fact that Nematullah praises Shaikh Bustan for his self-denial, austerity and nightly worship these are, no doubt, qualities which constitute the primary provisions of every gnostic's journey, but when a salik (devotee) reaches the stage of "qurb" it is here that love, the lover, and the loved all become one; there is neither togetherness nor separation, neither nearness nor distance, neither rejection nor acceptance. In sofism this stage is referred to as "mukhala'a".

Fourth Centenary of the Death of Shaikh Bustan Barets

# *Articles on*
# *Shaikh Bustan Barets*

life, works, parentage, residence and poetry

in pashto, Dari, Ozbek, Balochi,

English, and French

**Published by**

**the Ministry of Culture and Information**

Directorate of Culture and Art

**1982**

**Government Press**

